# د پښتو نثر ارتقاء

لہ قلمہ د

پروفیسر عبدالرؤف نوشهروی



اکاډمی سائنس اردو/پښتو یونیورسټی ټاؤن

پښـــاور

# پېرزونه

د هغه نثر نويسانو په

نوم چه د پښتو نثر جولئ ئې د هر قسم

ګلونو تحفه د که کړېده

تعداد ۵۰۰

قيمت ۸ روپئ.

# څلور مقالې


لومړۍ مقاله

د اخون درويزه او روښنيانو تر زمانې پورې ۴ تا ۱۲

دويمه مقاله

د خټکو دور ۱۳ تا ۳۰

دريمه مقاله

انګريزي دور سره د ضميمې ۲۱ تا ۳۸

څلورمه مقاله

جديد دور ۳۹ تا ۵۶

بسم الله الرحمٰن الرحیم

# د پښتو نثر ارتقاء

## رومبئ مقاله :- د اخون درویزه او د روشنیانو تر زمانې

د لسانیاتو عام اصول دے چې نظم تل په نثر سبقت اوړی۔ ولې چې نثر ابتدا کښې دومره جوګه نۀ وی چې ساده مګر بامحاوره تمکو کښې پیش کړے شی۔ تحریر کښې د ښکلا او جاذبیت رورواځی۔ پښتو هم د دے اصول نه مستثنیٰ نۀ دۀ۔ پښتو ژبه د نوی تحقیق مطابق پنځۀ زره کاله قدامت لری۔ د لته د نظم (په عربی رسم الخط کښې) قدیم ترین تحریر چې تر اوسه زمونږ لاس ته راغلے دے، ۱۵۶ء یا ۱۳۹ھ سره تعلق لری۔ ددے په مقابله کښې عربی رسم الخط کښې قدیم ترین نثر چې سلیمان ماکو سره منسوب دے د ۶۱۲ھ خوا او شا دے۔ او د دغۀ

---

ل۱ ایران کښې د میخی رسم الخط یو کتبه چې ۵۰۰ ق م سره تعلق لری څو فقرے په "دی ساتی قر" کید و یعنی عربی رسم الخط ته په راړولو مونږ دا سے لیکلے شو۔

نے اریک یم　　　نے دروژن یم　　　نے زورکړے یم

یعنی نۀ ضدی یم　　　نۀ دروغژن یم　　　نۀ زور زیاتی کوونکے یم

ظاهره ده، دا فقرے سوچه پښتو کښې دی او دا سے د پښتو ژبے او د پښتو نثر قدامت ورسره دوه نیم زره کاله په وروستو لاړشی۔ (تاریخ ادبیات جلد (۱۳) حصه اول - مطبوعه پنجاب یونیورسٹی)

دکتاب تـذکرة الاولیاء څو پاڼے دی هسے آثار کښے دڅو نورو کتابونو ذکر هم راځی۔ مگر دتحریری نمونو په غیر موجودګئ کښے موبز پرے مزید څهٔ تبصره نهٔ شو کولے۔ ددے کتابونو نومونهٔ څهٔ داسے دی۔

| دکتاب نوم | لیکونکے | سن تحریراندازاً |
|---|---|---|
| ۱ ۔ دسالو وږمه | محمد هاشم سوړانی | سنه ۲۹۱ه |
| ۲ ۔ تـذکرة الاولیاء | سلیمان ماکو | سنه ۶۱۲ه |
| ۳ ۔ دخداۓ مینه | شیخ متی | سنه ۷۵۰ه |
| ۴ ۔ تاریخ سوری | محمد بن علی بستی | سنه ۷۵۰ه |
| ۵ اخبار اللودهی | احمد سعید لودهی | سنه ۷۸۶ه |
| ۶ لرغونی پښتانهٔ | شیخ کټه | سنه ۷۵۰ه |
| ۷ دفتر شیخ ملی | شیخ آدم ملی | سنه ۸۲۰ه |
| ۸ دپښتنو تاریخ | شیخ کجو | سنه ۹۰۰ه |
| ۹ تـذکره غرغښت | بابېرخانه | سنه ۹۰۰ه |
| ۱۰ غرغښت نامه | دوست محمد | سنه ۹۲۹ه |
| ۱۱ تـذکرة الاولیاء | شیخ قاسم | سنه ۹۹۰ه |
| ۱۲ بستان الاولیاء | شیخ بستان بړیڅ | سنه ۹۹۸ه |
| ۱۳ تحفه صالح | الله یار | سنه ۱۰۰۰ه |

تاسفاً ددے دور څهٔ کتاب محفوظ نهٔ دے ۔ او ددے معلومات دپاره موبز تحفه سواد محمد هوتک دپټے خزانے بله حواله نشته ۔ دپټے خزانے[۱] دا قلمی نسخه دعبدالحئ حبیبي دریافت

---

[۱] دپټے خزانے په اسناد قلند رمومند او بعض نورو اعتراض کړے دے۔ عبدالحئ حبیبي واځی چه دا کتاب هغه ته علامه عبدالعلی ورلیږلے وو۔ مګر هغه دا اعلان هغه وخت کوی چه علا[illegible] وو وګوره رساله پښتو مارچ ۱۹۸۷) دے نه علاوه بلکه درسم الخط او لغت هم دی۔ مګر اوس خو حسن اصبح نشته چه خپله صفائی اوکړی۔

بنود نے شی او دیو پنځوس شاعرانو حالات او دکلام نمونے لری۔ څه په کښے د مؤلف همعصر او باقی قدیم دی

اوس دد ے دورنثر څو نمونے :۔

(۱) د شیخ کته د لرغونی پښتانهٔ ځنے یو عبارت چه محمد هوتک په تے خزانه کښے راوړے دے :۔

(۶) ابو محمد هاشم د هلمند په سروان په سنه ۲۲۳ھ قدسی زیږیدلی۔ او په بست کی یې له علما او فصحا ځنے لوسته اوکړه۔ او ورستو لاړ په عراق په کلو کلو د لویوا ئمه ځنے سمع وکړه او ابن خلاد چه څرګند و په ابن العینا سره یې په بغداد کښے عمرونه تیر کړل۔ او له هغه یې د عربئ بلاغت او اشعار او لوستل او په کال ۲۹۴ سنه هجری قدسی له عراق بیرته راغے۔ دری کاله ورستو په بست کښے وفات شهٔ۔ نقل کا چی ابو محمد په عربئ او فارسئ او پښتو شعر ونه ویل او هغه وخت چه ددهٔ استاد ابن خلاد په سترګو روند وو۔ نودهٔ به ئے خدمت کا۔ او هغه به ئے خواږهٔ شعرونه په ادب کی د عربو اوریدله۔ ابو محمد له عربئ ځنه پښتو خپل استاد چه ډیر شعرونه هم راوړی دی۔ مخکښے لیکی '' نقل کا چی ابو محمد په پښتو یو کتاب کښلی وُو۔ چی په هغه کی د عربی اشعار و او فصاحت او بلاغت بیان کړی وه۔ او نوم ئے وه د سالو وږمه[۱]۔ (پټه خزانه ص ۲۳-۲۶)

(۲) اوس د تـذکرة الاولیا ځنے د نثر یو عبارت :۔

'' زهٔ غریب خاورے سلیمان زوئ د بارک خان ماکو ......

---

[۱] سالو بمعنی ریګستان۔

چه په ویاله دارغسان هوسیږم او په دے مذکور پاټیږم په
سن دولس اوشپږ سوه هجری تللے وم او د پښتنخاه په
راغو او کلیو کرځیدم او مراقد د اولیاءاو د واصلینو ے
پلټل- په هر یوری ے کاملان موندل او د دوئ په خدمت
کښے خاکپائے وم او هر کله په سلام ورتله ولاړ- چه له دے
سفر نه په کور کښینستم او تنالی وچاودلی د پښنو بیا پاځیدم-"

اوس هم د پټے خزانے تحځه د محمد هوتک دخپل عبارت یو نمونه
"د لرغونی پښتانه مؤلف دا کتاب دغوره په بالستان کښے لیدلے
وه- دغه وجه ده چه په لرغونی پښتانه کښے دا مواد له دے
کتاب نه اخستے شوے وه- تر دغه عصر (۷۵۰ ه) لا دا کتاب موجود
وو- ځکه چه هم دغه کتاب د شیخ کته له ماخذ وتحځه دے
نو ویلے شو چه بستی به تر ۷۰۰ ه د مخه ژوندکاوه"

د نثر دا عبارت ساده او عام فهم دے- مګر دجملو ساخت او ژبے دومره
صفا ستهره ده چه دے ته مونږ ابتدائی کوشش هیڅکله نه شو ویلے-

تاریخی لحاظ سره دا دتذکرو دور وو- مثلاً تذکره شیخ عطار،
تذکره لب الالباب تعلق هم دغه زمانے سره دے- بعض محققین ابو محمد
هاشم سوراتی اولین نثر نګار شماری- دهغه زمانه ۸۳۲-۸۹۳ وه-
دا وخت اهل قلم اکثر مذهبی عالمان وو- ځکه پښتو مروجه علمی ژبو
یعنی عربی فارسی د اثر نه ځان بچ نکړے شو- او دد غه ژبو ډیر تکی
پښتو کښے استعمال شول-

وسط ایشیا کښے د عربئ علوم تمدنی دور کښے خوارهٔ شول- د

تفسیر، حدیث، فقهه، ادب او فلسفے دغه وخت کښے چرچه وه - اکثر کتابونه عربئ کښے وو - همدغه زمانه کښے هند سره دتګ راتګ سلسله شروع شوے وه - دا سے فارسي ژبه کښے دفنی نثر مروج کیدو سره د هند و ایران درمیانی خطه کښے پښتو هم دے اثرات نه بچ پاتے نۀ شوه او دا سے په پښتو کښے فنی اثرات د فارسئ عربئ په لار راننوتل - دلته دا خبره یاد ساتل پکار دی - چه هندوستان کښے اسلام او فارسی دواړه هم د پښتنو په ذریعه را اورسیدل -

د دے دور په پښتو نثر کښے محاوره په خپل اصلی شکل کښے موجوده ده - د کتابونو نمونه په سوچه پښتو کښے دی - د دغه دور بعض توکی اوس متروک دی مګر همدغه دیو ژوندئ ژبے نشانی ګڼړلے شی - د مضمون په لحاظ د دے دور نثر زیات تاریخی او مذهبی موضوعات سره تعلق لری - د وخت تقاضا هم دغه وه چه تاریخی مواد د محفوظ کړے شی مګر بیا هم د نثر د دغے لنډے او مختصرے پنګے سره د سړی تنده نۀ ماتیږی - دملک دننه او د ملک بهر لتون غواړی -

د دے دور نه وروستو یو اوږد دے خاموشئ نه پس آخر د مغلو په زمانه کښے د تحریک روښنیه غلغله را اوچته شوه - د اکبر باچا دور هسے هم مذهبی آزادئ دپاره مشهور وو -

بایزید انصاری د پیدائش جالندهر ۹۳۲ ه) دیر عالم خو نۀ وو - مګر زیرک او معامله فهم ضرور وو - بعض خلق دے تحریک ته نیم سیاسی رنګ هم ورکوی -

بایزید انصاری خپل کتاب خیر البیان ۹۸۰ - ۱۰۱۴ ه په موده کښے اولیکلو

سنہ ۱۹۵۹ء کښې دے کتاب یوه مسوده (کتابت سنه ۱۰۶۱ھ) مولانا عبدالقادر مرحوم ته د جرمنی تیوبیګن په یوه کتب خانه کښې په لاس ورغله - چه روستو بیا د پښتو اکیډمی د طرفه دا کتاب خور کړے شو - دا کتاب څلور برخو ژبو کښې لیکلے شوے دے - پښتو نه علاوه (اردو ، پنجابی) ، عربی ، فارسی عبارتونه سره سره ورکړے شوی دی - پښتوے ساده ژبه ئې خالصه ده -

تصوف ، سلوک او عقائد کښې اختلاف تر څنګه سید علی ترمذی (پیر بابا) او د هغه مریدانو سره ئې مقابلے او مباحثو ته خبره اورسیده - جمود ختم شهٔ - دواړو طرفه د نظم و نثر یو بنهٔ پنګه را جمع شوه - د خیرالبیان په رد کښې اخوند درویزه بابا خپل کتاب مخزن اولیکلو - د دوئی نه علاوه ملا مست زمند ، شیخ بستان ، الله یار ، کریمداد ، اخوند قاسم ، بابو جان ، حسین او جان محمد وغیره دے دور نثر نګاران دی - اوس د خیرالبیان او مخزن نه د نثر یو یو نمونه :-

## خیرالبیان :-

(۱) او بایزید وکښه خیرالبیان په هغه هسے الحان چه ئې لوست سورة الرحمان -

(۱۱) " او بایزید او کښه په آغاز د کتاب په درست حرفونو بسم الله تمام - زهٔ نهٔ ورکوم مزدوری د هغه کسانو چه کښی - بیا ورانوی - یو حرف یا تکے بیائې کښی چه درستیږی بیان - او بایزید او کښه هغه حرفونه[1] چه په هره

---

[1] بعضے خلق پیر روشن ته د پښتو خصوصی تکو د موجد درجه ورکوی - مګر یو خیال دا هم دے چه دا د سلطان محمود غزنوی په زمانه کښې د هغهٔ د دوؤ وزیرانو کارنامه ده (او ګورئ د خیراللغات ابتدائیه)

ژبه سازیږی۔ دفاش ے دپارہ د آدمیانو۔ تہ دانائی لہ هرڅیز۔ ما نزدہ ۔ بیرون حرفونہ دقرآن۔ او سبحان۔ دحرفوتو کښل پہ تادی۔ دحرفوتو څرګندول او نمونت وسودل پہ مادی (روهی ادب ص ۲۳۹)

(۱۶) ګورہ کړےم دے خیرالبیان پہ څلورژبے۔ موافق لہ قرآن۔ پکښں دے بیات د ریښتیا۔ دروغ۔ د حلال۔ دحرام او بیان وکړہ۔ وتہ کړہ دهرمقام پہ تا دوئی اعلام (ص ۲۹۷) (خیرالبیان)

(۱۷) ګورہ هرچہ لولی خیرالبیات او چار پرنہ کا۔ ور وبہ نہ بښیم ودہ وتہ څلورژبے او خیر بہ ئی نہ کړم۔ وکړہ۔ نکړہ لہ چارے دهر مقام۔ ولے پناہ بہ نہ مومی د دنیاپہ ژوندون د نوس لہ بدی تہ لہ وشیطان (ص ۲۹۹) (خیرالبیان)

**مخزن د اخون درویزہ:۔** "(۱) دخالق صفت کړم څو ئے توات وی دژبے دغہ بیس د رسول ثنا یہ وایم څو حیات یم پرنړئ۔

بے روحہ زندہ دے۔ کل تربیت ئے پکمال دے۔ لائق دے خدائی هرچا رپہ اندازہ کہ۔ خداوند ذوالجلال دے۔ خواهندہ دے د نیکی۔ د بدئ چہ دے زشت"

**د مخزن[1] څخہ دویمہ نمونہ:۔**

اوس زمونږ پہ زمانہ کښے ګمراهان بے حدہ ډیر دی۔ کہ څوئی بوئے وګورے تر دغہ دوہ او یا هم تیر دی۔ ولے زیاتہ اوس زمونږ بایزید سرہ دعوہ دہ۔ دے د خدائے تعالیٰ دلارے غل دے۔ لہ عالمانو څکہ ډیرہ هم لہ دہ نہ خرخښنہ دہ۔ ددہ حال بہ درتہ وایم لہ او لہ نہ ي نیسہ پہ یقین کښں۔ د بایزید پلار نیکہ وارہ عالمان وو۔ د ورمرو هم ریښتنی وہ پہ دین کښے ولے بایزید لکہ ملاشہ درہ فهمیہ سوداشہ۔ سودا ګرشہ د آسونو پہ طلب ددے دنیاشہ (مخزن ص ۲۲۸)

د بایزید د کتاب حالنامے پہ مقابلہ کښے لیکلی شوی تذکرۃ الابرار والاشرار

---

[1] د اخون درویزہ دا کتاب مخزن روښتو کړیمداد مرتب کړو۔

د عبارت یو نمونه :-

"دوه بایزید تهول کتاب (خیر البیان) پخپله نه دے تصنیف کړے.
بعضے بر خے ئے ملا ارزانی چه ملحد شاعر وو لیکلی دی او بعض دے ملعون
په خپله را غونډے کړے دی.- ارزانی یو بل کتاب هم تصنیف کړے دے.
دهر قسم ګمراهئ نه ډک دے او دے ته "چهارما" نوم ورکړے دے او
څه وخت چه پس تاریک شوکاری او مرګ ئے وړمیله خپله پیشه او ګرزوله.
نو ارزانی ورنه جدا شهٔ او بیر ته هند ته لاړو" (ص۱۹۹)

ارزانی چه پوره ئے ذکر راغے دده او د پیر روښان تر مینځه دغه
شل دیرش کاله فرق وو مګر د ارزانی نثر دکه چه لاندے نمونے څخه به
ظاهر شی روان سلیس او خوږ دے.- تکرار هم نه لری.- علمیت ئے هم
بهتر دے.

## د ارزانی د نثر نمونه (قلمی دیوان (پښتو اکیډیمی) سره ملحق

د ۲۲ پاڼو یو رسالے څخه ماخوذ) خدائے وئیل مانهٔ دی پیدا کړی سړی
او پیری مګر د بندګی د پار.- د هغ بندګی چی خدائے او پیږنی (او پیژنی)
د خدائے پیږندګلی (پیژندګلی) په عبادت شی.- او عبادت دوؤ لسندی
(دوه قسم دے) یو ګرکند او پټ.- ګرکند عبادت اول پنځ بیناځ مسلمانی
اول کلمه ورتګ او وایه او پښنځ (پنځه) وقت نمونځ (نمونځ) یو وقت د
سنانځ (ننانځه) او روبده (روژه) او زکات دی او نیت د حج دے.- یو هغ
فرض دے چی توان ئی دخرڅ دلار او کاله.- د دی ګرکند عبادت دے.
او پټ عبادت هغه دے.- چی دائم دخدائ یاد کښے اوسی (ص۱۰۸)

دا سے بایزید انصاری یو بے سرے دے چه د دفتری ژبے فارسی

په مقابله کښې پښتو ئے شعوري طور سره استعمال کړه. دا سے نوي نوي موضوعات زیر قلم راغلل.

(۱) دے دور کښې هم پښتو د فارسئ عربئ تهکی و اخستل خپل ئے کړل. مګر دا سے چه خپل انفرادیت ئے برقرار او ساتۀ.

(۲) علماء د خپل سهولت تر مخه الفاظ نه علاوه عربي او فارسي تراکیب هم استعمال کړل. دا سے د اولنی دور په مقابله کښې دے دور کښې علمی ژبه د مروجه ژبے نه څۀ قدرے جدا بښکاری مګر دا میلانات تر دیره قائم پاتے نۀ شو ولے چه غیر مانوس وو. البته دا ضرور ده چه خالص ادبی آثار سره سره منثور مذهبی لټریچر هم رواج بیا موند.

(۳) د پروبی دور ساده نثر په ځائے فنی نثر عام شۀ. مقفٰی او مسجع عبارت رواج بیا موند.

(۴) د سابقه دور مذهبی او اخلاقی مضامین سره د تصوف او سلوک مسئلے هم زیر بحث راغلے، دا سے دائره تحریر ورسره وسعت بیا موند.

(۵) د نثر دے دور کښې بعض تاریخی کتابونه هم اولیکلے شول. چه د دغه دور د شعراء کلام او د اولیاء اقوال پکښې هم لیدے شی.

(۶) د فارسئ عربئ بعض کتابونه ترجمه کړے شو. کوم چه ابتدائی کوشش باوجود نن هم خپل خوند رنګ لری، بے مزے نۀ دی.

نوٹ:- د دے مقالے په لیکلو کښې ما د خپل مضمون مطبوعه آباسین سحه هم استفاده کړے ده

دویمه مقاله

# دختکو دور

---

په خپل روستني مضمون کښې ما د پښتو نثر د ارتقاء خبره د پیر روښان او اخون درویزه تر زمانے رسولے وه . دا هغه زمانه وه چه علمي نثر نه علاوه مقفی نثر هم رواج بیا موندهٔ تراجم هم وشو . او خالص ادبي نثر سره سره مذهبي مضامین هم په پښتو نثر کښې قلم ته حندي کړے شول . بلکه بعض روایات کښې خود اسے هم راغلي دي چه د پښتو مخصوص رسم الخط د پیر روښان اختراع ده . اګرچه بعض نورے د د محمود غزنوي د وه وزیرانو یا درباریانو سره منسوب کوي .

بهرحال دے ابتدائي دور نه پس د پښتو نثر بالآخر د ختکو په دور داخلیږي چه دے ته د پښتو ادب سنهري زمانه ویلے شي . دے ارتقاء کښې دوے شپږ د کنړو نارینه او زنانه اهل علم لاس دے . خوشحال خان پخپله خوموزون طبع لرله شعر ویل ورته آسان وو . مګر نثر ئې هم لیکلے دے . د ده د بیاض سخن د نثر یوه نمونه او لولئ .

وو دے هلک یتیم شوے وو . ما لکه فرزند هسے ساتلے وو . خوښید م چه تیره زلمے دے . د شرم په وخت به ګم پکار شي . فلک هسے وې چه ته به ئے په خپله تورن وهے .*

---

* ارزاني د لیک نمونے اوګورئ

مغلو سره د خټکو اختلاف پښتو ادب د پاره نیک فال ده دا سے د فارسئ په ځائے چه د مغلو د دفتری ژبه ده ۔ دے خاندان د پښتو ژبے سرپرستی په ځان قبوله کړه ۔ او عالمانه نثر کښ د اظهار خیال کولو په ځائے دوئی ساده، عام او روزمره ژبه او لیکله ۔ خوشحال خان داسے یک چه د فارسئ عربئ عبارت ترجمه نښکاری مجهول بولی ۔ اګر چه د دستارنامه لیکلو په وخت هغه د سابقه دور دے ور ګوفت نه آزاد نه ښکاری ۔

د بیاض تحفه بله نمونه ۔

نو ر که هر څو مغلو بلم نه ورتلم ۔ ورته هم او ویل چه دما اولس هم دا قعه طلب دے چیرے به فساد وکا ۔ د خیل اولس په بند وبست مشغول یم ..... په دا مینځ کښے فدائی خان خزانه راوړه ۔ دما اولس راته ویل چه خزانه به وهو ما ورته ویل چه د مغل د پښتانه اعتبار پاتو نه شه ۔ زه اول هم د مغلو دا غونه په زړه لرم چه بے تقصیره قید کړم ۔ و لے نمک حرامی کیږی ۔ څلور پنځه پښتنه ما د مغلو نمک خوړلے دے ۔ خزانه به وهم؟ القصه فدائی خان له اشرف خان داتک تر سینده پورے ورغے ۔ خزانه ئے ورسره پورے کړه ۔ پښاور ته اورسیده ۔ د اشرف خان تملق ئے ډیر وکړ ۔ سرو پائے ورکړ دا ر خصت ئے کړ ر صـ ۲۹۹ تاریخ مرصع )

اوس د دستارنامے یو پیراګراف په طور د مثال پیش کوم ۔

د پښتانه نسل ډیر قوله اورسیدلے ۔ لیدلے شوی دی ۔ په تحقیق هم دے کار مبالغه ډیره اوکړه تاریخونه شه (بنه) د نسب رسالئی ۔ نسب نامے هم پینتظر کښیوتی (کښیوتے) ..... پښتون ډیردی قومونه او لسونه ۔ دوا رو ګنجائش نشته که حق تعالی نجات راکړ ۔ وداع ورکړه شی ۔ د د تنتبور ورغلم ۔

پکور علیحدهٔ تاریخ به ا نشاشي چه يي تماشه شي "

(ز) د دستار لا نقت موقوف په هغه خصلتونو هنرونو دے۔ نقصانات

ئے په عدم حصول کښے دے۔ هنرونه، کسبونه، فنونه، حرفتونه، خصلتونه،

خویونه ډیردي تر شماره تیر دي۔ کهٔ وار و پسے زغلے ۔ عمر د نوح بویه چه

په تعلیم ئے حاصل کهٔ " ۔ دے بیان کښے رواني او تواتر نشکاري ۔ ے

تکلف لوستے شي ۔ اګرچه طرزیي د علمی نثر دے

د خوشحال خان نه پس د دهٔ ځوي عبدالقادر خان د ګلستانِ سعدیؒ ترجمه

اوکړه یو عبارت نقل کوم۔ هغه خپله باره کښے ییکی ۔

" پس ۔ م له ډیرو فکرونو مصلحت دا او لید چه باقی عمر ځان ته

ناستے پسنے د قناعت په لمن نغښتے بهتر دے ۔ مشغولا له کتاب ۔ وتله

په لوری د مسجد چه سعادت د دُنیا او آخرت دے غنیمت ګڼړلے بویه ۔

اکثر به تنها ناست وم کله کله به م بعض یاران راغلهٔ ۔ استفاده

به ئے د علم عربي وفارسي کوله بعض دوستانو را تحفه ګلستان کتاب لوست۔ ډیر ډیر به يي ویل چه کتابونه

د فارسئ عربئ ډیردی ۔ اما په پښتو ژبه کښے کتابونه د پښتو

نشته ۔" (روهي ادب ۱ ص۲۳ )

د عبدالقادر خان د نثر بله نمونه

یوه ورځ د دهٔ (د خوشحال خان ) په خدمت کښے ناست وم ۔ له یوه ځایه روپئ

راغلے وے ۔ په مستحقانو يي پخپل لاس قسمت کړے ۔ لاسونه يي وکتل تور شوی

وه ۔ کوزه خدمتګار راوړه ۔ چه لاسونه يي وول ( او وینزل ) راته يي وفرمایل

چه دکه لاسونه د روپئ په قربت تور ېږي۔ زړونه يي په محبت لا سیاه تر شي۔ د لاسونو

سیاهي خو په وللولا ړه شي اما د زړه د سیاهي تلهٔ دشوار دی ۔ بے د حق تعالی د توفیق له اوبو

سپینیږي ۔ ( بحواله د پښتو نثر بي بي مریم ص۲۱ )

اوس د گلستان د ترجمې یو مثال ـ (گلدسته عبدالقادر خټک پښتو اکیډمي ص۱۰۹)

" نوشیروان چه په عدل و انصاف مشهور وه ـ یوه ورځ ښکار ته وتلے وو. ښکار ئې وژلی وو ـ کباب ئې کاوه مالګه حاضره نه وه ـ خدمتګاري کلی له ورواستوه چه ورشه مالګه په بها راوړه چه بد رسمي اونه شي ـ کلے به خراب شي چا وویل په دا هومره مالګه راوړل به څه خرابے کیږي دهٔ وے بنیاد د ظلم اول لږ وو ـ هر څوک چه حاکمان کیدل په وار وارئ زیاتوه تر دے حده ورسیده "

د عبدالقادر خان ورور صدر خان خټک یو عوامي قصه آدم درخانئ لیکلے ده ـ د ډیک نمونے څهٔ دا دے ده ـ

(۱) ـ " مناظره د آدم درخانئ سره ـ چه درخانئ ترے په طور د امتحان د سوال وکړو ـ یعني چه فضیلت د آدم زاد په سائر حیوانات په څهٔ سبب دے ـ مدعاله دے سوال د درخانئ اگرچه ضمناً اصل کار وه اما ظاهراً یي د آدم فضیلت او علمیت وو ـ یعني چه د آدم فضیلت او علمیت به له دے سوال په بل څه معلوم نهٔ کړم " مثنوی آدم درخانئ (پښتو اکیډمي) ص۱۵۸

(۲) د یو بلے سرخئ (آدم درخانئ) عبارت :ـ خبریدل د آدم خان په ورکول د درخانئ ـ له زیاته دیو بودئ او بد دعائي کول د آدم خان په باب د میر بامی او هم له هغه چه خبر شه جار وتل وخپل کور ته ـ چه کوري میشته په هغه وخت په زاړه پیر وو ـ چه مشهور په زړه مینه دے ـ او هغه وخت چه آدم خان داخل په کور شه د نس خوږی له ډیره غمه پریوات ـ څلویښت ورځے د درخانئ له طرفه د ستے د کلونو ورته راتلے ـ پرې پا ئیده ـ آخرئ له جهانه فاني کوچ وکړ ـ

آدم درخانئ ص۱۸۵ پښتو اکیډمي چاپ)

گوهر خان ولد خوشحال خان خټک د قلب السیر په دیباچه کښے لیکی ـ

در دا چه اکثر کتابونه له عربي، فارسي دا نو بزرګانو وخپل عالم ته
چه په تازي ژبه کښې به يې فهم پرے نشهٔ نهٔ کيده په فارسي د دوئ
د پاره ترجمه کړل - سهولت ئې شواو بنه مينه يې پرے پيدا کړه.
په پښتو کښې دا رواج نه وه - اخون درويزه يو کتاب مخزن ويلے دے
حق تعالیٰ دې او بخښي - اکثر خلقو ترے فيض بيا موندو - زمونږ پلار
مرحوم خوشحال خان خټک، الله تعالیٰ د په قبر نور کا - هر ګونه
کتابونه ئې تصنيف کړل - دا دي د فصاحت او بلاغت د پښتو ژبے
در کړه - فارسي وته يې په لذت نزدے کړه " (روهي ادب ص۲۴۲)
افضل خان خټک ولد اشرف خان هجري ولد خوشحال خان يو مؤرخ ده -
علم و ادب سره يې شغف لرلو - شاګردان به يې هم مصروف ساتل - انوار سهيلي
(قصه کليله ودمنه) ترجمه ئې د علم خانهٔ دا نش په نوم اوکړه - دے نه علاوه
د خټکو تاريخ ئې د تاريخ مرصع په نوم اوليکلو - وائي چه د خوشحال خان ديوان
او د هغوئ نور کتابونه ئې هم ده مرتب کړي وو - د تاريخ مرصع د نثر نمونه اوګورئ -
(بکه عيار دانش وغيره)
په طبقات اکبري کښے دا ورې دی چه هر کاه چه ئے راجه مان سنګه په حکومت
د کابل سرفراز که له امرا کانو د کابل څخوته ئے په رکاب ظفر انتساب کښے اوساتل - باقي
امراکان ئے په کمک درا جه مان سنګه سره رخصت کړه - هر کاه به په پيښور داخل شه
حقيقت د جلال الدين ورته معلوم شه" (روهي ادب ص۲۴۵)
(يله نمونه لوانوار سهيلي سخه)
دمنه اووے چه يو لومبړه په ځنګل کښے په بوئ د طعمه هر طرف ځغلان او پريان وه -
نظر يې په يو مرغ خانګي اولګيده - چه د اونے لاندے يې منبوکه په زمکه وهله - دا ورته په
ځاؤ شوه چه ښکاري کا - په هغه وته پورے يو طبل باز اويزان وه - په د هغے ونے څانګه پرې
لګيده - د طبل باز نه په آواز سهمګين خوت - ترورپئ فکر اوکړو چه دا آواز په دا قوي جثه بهتر
تو چرګ دے - شايد چه دا غوښه څو رب او په طعمه زيات وي - د چرګ له څو پاسيد په طبله باز
وترغابنته - چرګ په دا واقعه خبر شه مخ يې په ګريز رضد ) رونيوه - له تهلکے د تروپرې خلاص شو (روهي ادب ص۲۴۶)

دختیکو نه علاوه په دے زمانه پیر معظم شاه سره هم یو کتاب منسوب دے۔ د ۱۱۶۸ه دا کتاب تاریخ حافظ رحمت خانی دراصل د تاریخ خان کجو یا تاریخ افاغنه تلخیص دے۔ د نثر نمونه یې او ولئ۔

(۱) شیخ ملی نهایت متدین، متقی، قائم اللیل، صائم الدهر سرے وه۔ هر چرته چه به تلو، خدمتگار به کوزه داو داسه ورسره کوزوله۔ او دے ما تحت د ملک احمد مقتدا او درست یوسف مندنړ وو۔ دے د هر چارے، د هر مهم غمخوړ وو همگی کلی ملکونه تپه په تپه کوړ په کوړ دده په دفتر کښے خت لی وو۔"

(۲) "دا مستی او بدی د دوئ په میرزا او په مغلو هم بده او لگیده۔ اما له ملا حیطے د یوسفزئ اصلاً دم نشو وا هه نوړ د میرزا او د مغلو قهر غصه دیوسفزیو شه لا زیاته شوه۔ بارے لکه یوسفزی واړه سلح دا غلی وه۔ د میرزا او د مغلو وار او لاس او قابو ئے نړے او نه رسید ے"۔

د دے کتاب ژبه ساده او تحریر کښے تسلسل نیکا ڑ دے۔ البته دوئ هم فارسی تهکونه ځان خلاص نکړے شو۔ عرض د بایزید انصاری د زمانے نه پس د پښتو نثر خپل ارتقائی سفر جاری او ساته او نثری ادب د مذهبیاتو د حصار نه بهر دا اوته۔ د روزمره ژوند تقاضو او ضروریات سره ئے ځان هم آهنګ کړو یعنون ئے وا خست او مقصدی لیکلو سره روښتو د تلونکو لیکونکو د پاره ئے لاره صفا کړه۔

په دے دور چه تنقیدی نظر وا چوؤ نو معلومیږی چه فارسی عربی الفاظ او فارسی تراکیب چه په وروستنی دور کښے په پښتو نثری ادب کښے دا ننوتی وه، هغه د خوشحال خان د دۀ د زامنو او کاظم خان شیدا وغیره په تحریرونو کښے هم سد ستوړ موجود وه۔ البته دے دور کښے نثر د نیم نظم د چکر نه

مکمل طور سره دا اووت ـ عام سړی ته په لیکنې لیکل آسان شو او طرز تحریر یې عام ژوند ته رانږدې شو ـ قافیه بندي ختم شوه ـ نثر کښې دوباره سادګي شیریني او رواني راغله ـ دا وخت د علماء نه علاوه عوام هم پښتو کښې خپل مافي الضمیر پیش کول شروع کړل ـ اګر چه فارسي کښې خط و کتابت هم ورسره ورسره روان وه) پښتو کښې د فارسي عربي نه ترجمې اوشوې فولکلوري قصې اولیکلې شوې ـ څه د خپل پښتانه روایاتو نه او څه د نورو ژبو نه ـ

د بره ذکر شوي کتابونو نه علاوه راورتې دې دور کښې د مظفر بن اسمعیل د لاس د اعظم کوفي د فتوحات ترجمه هم بیانی دے نه علاوه عبدالله قندهاری، فتاوی احمد شاهي، د پیر محمد کاکړ معروف الافغاني نمونه هم راځي ـ د پټې خزانې اسناد دې که چرې او منلې شي نو د نثر هم دې دور سره تعلق لري ـ

عرض دا چه د مغل دور د نشیب و فراز نه راوتو نه پس د دې دور نثر اوس معیاري نثر اوګڼلې شو ـ او په مختلف اصناف کښې پکښې لیکل اوشو ـ او ټول مروجه علوم زیر بحث راغلل ـ

د هند په سیمه حافظ رحمت خان د شهامت پور ( طور و معیار ) اوسیدونکے یو پښتون وه چه د روهیلکنډ په نوابانو کښې وه د پاني پت په جنګ کښې (۱۷۶۱ء) د احمد شاه ابدالي یو مضبوط ملاتړ وه چه ۱۱۸۸ھ روښتو شجاع الدوله د انګریزانو په مدد یو جنګ کښې شهید کړو ـ فارسي اُردو او پښتو کښې به یې لیکل کول ـ او ښه مؤرخ وه ـ تواریخ حافظ رحمت خاني او خلاصة الانساب د ده دوه مشهور کتابونه دي ـ د ده ځوئ نواب محبت خان یو ښه عالم ـ شاعر او ماهر لغت وه ـ د ریاض المحبت د ده مشهور پښتو لغت دے ـ چه څو نسخې یې اوس هم شته ـ

تفسیر افضلیه - نواب افضل الدوله دکن (حیدرآباد) ۱۸۵۷ء د نوابۍ
په مسند کېښناست - کال ۱۲۷۳ھ ددۀ په وینا د عالمانو یو جرگې د قرآن پاک
د ترجمه لیکلې ده تفسیر سره یو رساله هم لیکلے ده - چه د قرأت په اصولو
بحث کوی -

د ترجمې نمونه څه دا رنگ ده -

(۱) یا ایها الذین امنو کتب علیکم الصیام کما کتب علی الذین من قبلکم -
هغه قوم چه ایمان راوړے دے - فرض کړه شو په تاسو روژه -
لکه دا رنگ لیکلی شوی ده په هغه چه مخوا له تاسو وه - نبائی چه
تاسو پرهیز کوئ - روژه نیسی شمیرل شوو ورځې - پس هر څوک چه
وی له تاسو (چه تکلیف کړی شوی وه په دۀ روژه) رنځور یا
ولاړ په سفر شمار له ورځو نورو -

(۲) د سورة الناس ترجمه :-

وایه پناه غواړم په پروردگار د آدمیان سره، بادشاه د سړو،
معبود د خلقو - له بدی د وسوسه کوونکی پټ وونکی - هغه
څوک دے چه وسوسه (اچوی) په سینه د خلقو کښې له جنان او له
آدمیان" -

---

نوټ :- دے مقالے په لیکلو کښې ما د خپل مضمون مطبوعه ایاسین سخه هم استفاده کړے ده -

دریمه مقاله:-

# انګریزی دور

د مغلو زوال سره مرکزی حکومت تکړے تکړے شو- ځائے په ځائے واړهٔ واړهٔ حکومتونه نوابیګۍ او راجواړے جوړے شوے- انګریزانو چه سرطامس رو د زمانے نه مغل دربار کښے اثر رسوخ بیاموت- کلکته کښے خه مراعات حاصل کړل- تجارتی کاروبار ته ئے لاس واچولو- دا سے بیا ایسټ انډیا کمپنی رو رو په سیاست کښے ګوتے وهل شروع کړل- او بیا یو وخت دا سے راغے- چه هندوستان ټیغ په ټیغه د ملکه وکټوریه د حکومت یو برخه اوګرزیده-

دے دوران ملک کښے دوه عظیم سانحے راپیښے شوے- یو په ۱۸۳۰-۳۱ کښے سانحهٔ بالاکوټ چه په ظاهره د مسلمانانو او سکهانو کشاله وه- مګر پشی شا پکښے د انګریز د پلو پیسی کارکولو خلقے خپلو کښے سره واچول- د نفاق او اختلاف په نتیجه کښے انګریزانو ته د سرحد په دے علاقه کښے هم د دخل اندازئ موقع په لاس ورغله- د دے سانحے نه لا مسلمانان په ناصورت شوی نهٔ وو چه د ۱۸۵۷ء د جنګ آزادی او نختم- د دے هم مسلمانان خصوصاً پښتانهٔ هر چرته پیش پیش وو- ځکه زیات نقصان هم دوئ سته اورسید- په نتیجه کښے د جمود یو حالت په دوئ غلبه بیاموته د اړی ګړی د دے زمانے پیدا او ارهیده سردارنامتو نیکو ال حافظ رحمت خان او دهغه دخاندان نورغړی وو- چا سره چه د شاعرئ نه علاوه- د تاریخ- نسب نامو

او لغت څو کتابونه منسوب دي - حافظ رحمت خان د پاني پت په جنګ کښ سره د پښتنو د يو لوئے لښکر احمد شاه ابدالي ته د ډير کمک ورکړے وو - ترڅه چه خپله هم دده په مرسته کښے جنګيدلے وه -

۱۸۵۷ء د واقعات نه پس - کله چه د انګريزانو کرفت په دے علاقه څه قدرے مضبوط شه هغوئ دا محسوس کړه - چه په سرحدي علاقو حکومت کولو د پاره ضروري ده - چه د دے علاقے ژبه پښتو زده کړے شي او د دوئ رسم و رواج سره هم واقفيت حاصل کړے شي - د اسے د انګريزانو څو اتاليق يا تيوتران اوليدے شو - دے ليکوالو د فيرنګيانو د پاره په آسانه ژبه کښے څو کتابونه او ليکل چه په کښے د لغت او ګرامر څو کتابونه هم شامل وه -

جنګ آزادئ کښے ناکامئ سره د خلقو زړونه مات شول ورپسے د ياس او نا اميدئ اوږد دور راغے - مسلمانان خصوصاً د دے علاقے پښتانه په د دے مخمصه کښے وه چه څه اوکړي او څه او نکړي - انګريزي تعليم د پاره څو سرکاري مدرسے هم اوښتے شوے مګر د دے علاقے خلقو ورسره بالعموم قطع تعلق اوکړو - هم ځکه د زير بحث دور زمونږ پښتو ليکوال څه خاص تعليم يافته نه وه - د غه د فارسئ عربئ څو کتابونه پرې ويلي وه او خال خال په کښے تو اتمے يا لسمے درجے رسيدلے وه - بعض په کښے د زمانے د تغير رخ انداز او نګوله - د د يوال بيک ئے اولوست ځکه د غه وخت نوے نسل ( يعني زمونږ پلاران ) انګريزي تعليم طرفته څه قدرے مائل شو - مطلب دا چه په د غه دور کښے د پښتو لوستونکي ډير کم بلکه د نشت برابر وه - ( سوا د پښتو څو مذهبي کتابونو چه زنانو يا د جمات طالبانو کښے مقبول وه ) نور کتابونه هم نه وه د اسے څو کتابونه د انګريز حاکمانو يا پادريانو په معرفت او مرسته اوليکلے شو -

څهٔ پکښے ترجمے هم اوشوے ـ خیال دا وه چه دا سے د نورو ژبو مقبول کتابونو
ته د پښتو جامه وا چولے شی او دا سے په خلقو کښے د پښتو لیک لوست شوق
پیدا کړے شی ـ د دے دور ادب اکثر په قیصو ـ لطیفو ـ ورو ورو د لچسپ
مضمونونو باندے مشتمل دے ـ ناول د غه زمانه کښے په اُردو کښے هم په ابتدائی
شکل کښے وه ـ بعض لیکوالو د دوئ ترجمه اوکړه ـ لکه د میاں حسیب گل مرأة العروس
ترجمه نقش نگین یا لکه د توبتهٔ النصوح ترجمه چه میاں محمد یوسف سره منسوب
ده ـ او یا لکه دا خلاق محسنی ترجمه عنوان النصائح او د میاں نعمان الدین
ابن بطوطه د سفرنامے ترجمه وغیره ـ د غه دور کښے بعض منشیانو د انگریزی
کتابونو ترجمے هم اوکړے ـ لکه د تاریخ افغانستان وغیره دا سے د پښتو کتابونه
څهٔ قدرے عام شول ـ بعض نورو لیکوالو خالص ادبی مواد هم کتابی شکل
کښے پیش کړو ـ او بعضو لکه د میرا حمد شاه رضوانی درسی کتابونه بهارستان
افغانی وغیره هم اولیکل د دے لیکوالو نثر سوچه ـ خوږ او شیرین وه ـ
طرز ادا ئې قدرتی وه ـ څهٔ متلونه او محاورے به ئې هم استعمال کړے ـ
مگر په موقع او بر محل ـ بناوټی پکښے نه ښکاری ـ دا سے معلومیږی لکه چه سړے
یو بل سره خبرے کوی ـ البته مذهبی یعنی عالمانه نثر کښے د اسے نگی لکه
چه سړے تحت اللفظ ترجمه وائی مگر دا طرز بیا زر ختم شو ـ د پښتو صلی
لغت کښے گوری ـ نو د دے دور د کتابونو ورق گردانی اوکړئ ـ د دے دور نامتو
لیکوالو کښے مولوی احمد ـ میرا حمد شاه رضوانی ـ احمد جان ـ میاں حسیب گل میاں
نعمان الدین ـ میاں محمد یوسف ـ میاں عنوان الدین ـ پادری خیر الله او د
ننگی مولوی عبدالرحمان نوم ونه شمیرلے شو ـ دوئ نه علاوه تش کو کښے ـ د گل احمد ـ
مرا وعلی ـ عین الله دوست محمد ، سید احمد ـ قاضی عبدالقادر ، امیر علی ـ

رضوان الله - غریب - غلام محمد - عبدالوهاب - غلام جان، پیر محمد عجب خان وغیره نور څو نومونه هم دا زی -

لاندے به زهٔ د بعض مشهورو لیکوالو د نثر څو نمونے پیش کړم چه لوستونکی ترے پخپله محظوظ شی او د طرز تحریر او ژبے اندازه هم اولګوی -

(۱) مولوی احمد دتنګی (۱۸۵۵ - ۱۸۸۳) دانګریزانو د پښتو اتالیق وه - تاریخ سلطان محمود او ګنج پښتو (قصے) قصه جمجمه - قصه غل او قاضی (منظوم) لیکلو سره د دے دور آغاز او کړو - کوم کښے دوئ پښتو نثر د نیم شعری طرز نه دا اوویستو - عبارت کښے د فارسی عربئ ګنړ الفاظ او د جملو پیچیده ساخت متروک شه - ځکه نثر ئے خوږ او عام فهم دے - د محاورو بے دریغه استعمال نه ئے پرهیز کړے دے - وائی چه د قرآن پاک ورمبئ سپارے ترجمه ئے هم د مفتاح القرآن په نوم کړے وه - اسماءالحسنیٰ او طوطی نامه هم ورسره منسوب ده -

## د ګنج پښتو دیک نمونه :-

(۱) ناګهانه وارد ایاز راغے - چه ایاز له ئے ملغره ورکړه - نوورته ئے اووے چه وایه تا ته دا دے ملغلرے قیمت څومره ښکاری - هغه ووے - زما صاحب سدا معلوم ځکین دے چه ډیر لوئے قیمت لری - نو زهٔ به څهٔ اووایم - بیا بادشاه ورته ووے - چه ماته ئے کړه - هغه دستی دوه کانړی را اخستل - په یوئے ملغلره کیښوده او بل ئے پرے داګذار کړو --- امیرانو وزیرانو ورباندے شور جوړ کړو --- چه دوئ سترګی شول --- نو ایاز ورته اووییل --- دا ملغلره د ماتولو نهٔ وه - لیکن زهٔ بت پرست نهٔ وم چه په کانړی به مے مینه کوله او د خاوند خبره به مے نهٔ منله او که رښتیا وائیم نو ملغلره خو تاسو ماته کړه - وے چه د بادشاه حکم له ملغلرے

مکه په زړ څله بهتر دے۔

(۱) یو سوداګر وه چه نیت ئے دسفر د هندوستان اوکړو۔ دکور لوئے واړه ئے را جمع کړل او دبیل بیل نه ئے پوښتنه اوکړه۔ ورته ئے ووئیل چه اووایه چه تاله څه څیز له هندوستان راوړم۔۔۔ دغه سوداګر یو طوطی په پنجره کښے بند وه۔ نور ے هغه له ورغے ورته ئے اوویل چه اووایه اے طوطی تاله څه راوړم۔ ځکه چه هندوستان له ځم او ته هم هندوستانے ئے نو ووایه چه څه څیز د دخپل وطن خوښیږی۔ طوطی ورته اوویل چه زما دپاره دا قسم مصرباخی اوکړه۔ چه فلانکی ځنګل ته ورشے نو هلته به طوطیان په ونو ناست وی۔ اول زما سلام ورباندے ووایه۔ بیا۔۔۔

(ګنج پښتو صـ ۶۳)

دکه چه لیدشی دا عبارت د قافیے۔د سجع د تکلف نه آزاد او عام فهم دے د لته کاتب دخ په ځائے هم څ استعمال کړے دے (لکه چه دا دغه زمانه کښے عام رواج وه)

(۲) **میر احمد شاه رضوانی**۔ (شمس العلماء) (۱۲۷۹-۱۳۵۳ھ)

دا کبرپورے او سید وتکے یو عالم او شاعر وه اهم تصنیفات ئے بهارستان او شکرستانِ افغانی دی۔ بهارستان تر ډیرے مودے سرحد د میټرک په کورس کښے شامل وه۔ دے نه علاوه د تاریخ کافرستان۔ تاریخ آفریدی۔ آثار قدیمه۔ سفرنامه رضوانی۔ تحقیق الالسنته دیوان او قصائد وغیره هم ورسره منسوب دی۔

**دلیک نمونه** (۱) واقعه چه صابرشاه نومے یو مستانه وه۔ چه دنادرشاه لښکر سره به تل په کوچ او مقام کښے شریک او همراه وو۔ او نادرشاه خیمے

تخته دده دوښو جوړکړه جوړه وه - دے به پکښے ناست وه - دختے آسونه بہ ئے جوړول - د لرګی سواره به ئے پرے سورول - دتیلو منیزے او ټورے بہ ئے ورسره تیارولے - ځان سره به ئے ګیاوه - خلقو وے چه دے ابدال دے.
چه دخراسان تصرف دده په لاس کښے دے - نادر هم دده معتقد وه - دده په کار کښے بہ ئے دخل نه ورکوه - وائی چه نورو سردارانو چه به د بادشاه سلام ته راتلل نو دے به چپ وه - خو چه احمد خان به راغے نو دہ به چغے کړے.
چه احمد خان زرشه تا بادشاه کوم - دغه دے رسالے مے درته د آسونو جوړے کړے دی - وسله تیاره ده . زر شه تیار شه - (بهارستان افغانی)

(ii) د محمود غزنوی په زمانه کښے دے ښار د نوم پرشور وه او د شهاب الدین غوری په وخت کښے برسوشه - بیا بہ ئے ورته د باګرام ښار وے د نادر افشار په زمانه کښے نوم ئے پرشاور وه - او اوس په پښناور یادیږی ولے چه د هر ملک سړی د لته پیښیږی - و بعض هم د پښناور په ملک کښے دیر بوے ښار وه - محمود غزنوی د راجه جے پال ځوئی - انند پال سره د لته لوئے جنګ کړے وه - زړه لار هندوستان ته دے ښار وه - اوس ورکو تے شان کلے پاتے شوے دے - دا هم هغه ښار دے - چه د صوابئی په علاقه کښے د هنډ په نوم اوس یادیږی - (شکرستان صفحه ۱۳)

خپلو دے کتابونو کښے رضوانی صاحب دخپل مضامین نه علاوه د زړو لیکوالو د منثرځه نمونے هم پیش کړی دی - نثر بہ ئے ساده - روانه او با محاوره ده.
بعض مضامین ئے مزاحیه انداز هم لری - هم ځکه دوئی د جدید نثر په مبتدیانو کښے هم شمیرلے شو او هم دغه دے زمانے د لیکوالو غټ خدمت دے.

(۳) (و) منشی احمد جان (خان بهادر) (۱۸۸۲ - ۱۹۵۱) - لکه د مولوی احمد د فیرنګیانو

د پښتو استاد وه. هم ځکه سادګی او سلاست ئے د ده یک خصوصیت. مشهور تصانیف ئے هغه دغه (قصه خوانئ کپ (مطبوعه لندن ۱۸۷۱ء) د کرنل میلس تاریخ افغانستان ئے ترجمه کړو. ورے ورے جملے او محاورو او ضرب الامثال بر محل استعمال ئے د نثر خاصه وه. (جدید نثر نګارئ اثار ئے هم یک کښے لیدے شی او س د قصه خوانئ کپ او هغه دغه ځخه د نثر یو نمونه

(۱) مالاکنډ - په دیر آباد ځائے کښے پروت دے. کیر چاپیره تړے د یوسف زو دیرکلی په خپل خپل شان آبادوی یو ځو میله هغه خوا تهانړے لوئے کلے دیر د سیل ځائے دے. په پسینو او سیندونو په ولو دسوات تمول ملک یو شین بهار دے - چرته شنو شنو درو د میوو او ګلو نو غیږے د کے کړے. زړهٔ خوشحالوی - چرته ځنګر نو غرونو د نښتر ونشا نونه په اوږه کړی. د خدائی قدرت ښئی.

(۲) بو طبیب چه به چرے اوږے ته ته نو یه مخ بہ ئے ځادر اچوه. خلقو ترے تپوس اوکړو د ولے؟ هغه درته اووے چه دوے قبر ونو د مړونه زۀ ډیر شرمیږم - ځکه چه دوئ زما په لاس مړهٔ شوی دی. (هغه دغه)

(۳) دے نه پس د آدم خان د عمر منزه وو که شوه. او رو رو دا ئے له برمه پریوت چه کټ ئے اونیوه. په درخانئ هم څلے پښے زور او کړو چه صبر ئے تمام شه یو ځل دا ستا دیدن خله او یو ځل د دائی په خله ځخه نښتے نښانے او سوال ځواب ئے اولیدلو. (د قصه خوانئ کپ)

(۴) میاں حسیب ګل :- (- ۱۸۸۰) زیارت کاکا صاحب په پښتو مین ډیر نیکوال پیدا کړل. نن هم ګنړ قلمی کتابونه د لته کور په کور پراته دی. مګر څوک ئے خصمانه او فکر نۀ کوی. ځکه د پښتو جو خوراک ئے او ګنړهٔ.

دمیاں صاحب دلاس لیکلو کتابونو نومونه دا دی - د اصحاب کهف قصه (دافع الغم) عجیب وغریب - شمس وقمر - گلدسته حکایات بیاض (ونقش نگین (د دپښتو نذیر احمد د مراة العروس ترجمه) وغیره - اصل کتاب ته چه سړے اوګوری نو دا ترجمه با محاوره - روانه او خوږه ده - اوکه د اردو مسودے خامئ ترے او باسے نو دا سے نه ښکاری چه ترجمه ده - بل دا نو تعلیم وتربیت سره متعلق یو کتاب ترجمے له خوښول او پښتو کښے پیش کول دمیاں صاحب روشن خیالئ دور اندیشئ او اصلاح احوال طرفته اشاره کوی - زما ترفهمه دا یو بے کتاب دے چه د اردو نه په پښتو کښے ترجمه شوے دے - دپښتو دا کتاب ۱۹۵۲ کښے بیا چاپ شه - وائی چه دمیاں صاحب نور هم څو کتابونه پښتو کښے ترجمه کړی دی ۔

اوس د نقش نگین دعبارت یو نمونه :- "اے قدر منے لورے - نیازبینے - اصغری خانم - د ستر کو تورے - په دے خر کنده پوے شه - اکبری خانم هم لور ده - د تانه مشره ده - هغه هم وادهٔ شوے ده - ماورته هیچرے دا سے د پینے خبرے کړے نه دی - خو په تا باندے دیرے شانه مین یم - ځکه درته دا نصیحت کوم چه ودیدن کښه دا خبره نه ده چه ښه زړوکے به وغونسے - اومیلمانهٔ به راشی خپل پردی به راټول شی - ته به مال اسباب - جامے - جوړے کالی - لوښی کودی بیا موے خوشحاله به شے بلکه ودیدل د نوے سره دنیا په ښځو باندے - په سړو باندے شروع شی - خاص د ښځو چه ونوه خلقو سره سے روزګار شی - په نا اشنا کور کښے اوسیدل شی"۔

**(۵) میاں نعمان الدین احمد :-** چه په احمد میاں مشهور دے - سرودیر (سرخ ډهیری مردان) اوسیدونکے یو عالم کورنئ سره تعلق لری پخپله یو ښهٔ ادیب

او شاعر وه۔ ملازمت کښې د سول سروس په اوچتو عهدو پاتې شوې دے۔ د پښتو د ترقۍ ډیر ارزومند وه۔ خصوصًا سره به یې لیک لوست تصنیف و تالیف کښې لاس امداد هم کولو۔ خپله هم لیکل کړی دی د یو کتاب نوم یې "ظفر النساء" دے (مطبوعه ۱۳۵۲ھ) د نثر نمونه یې څه داسې ده "(۱) د اسلام په اول زمانه کښې او پس له هغې ډیرې مسلمانې بیبیانې ښه ښه عالمانې تیرې شوې دي۔ په طور د مثال دیوې څو قصې چه په اصل کښې ویشتې وه۔ لیکن علم یې کامل لره په دے مطلب نقل کوم چه خلق عبرت واخلي او پوه شي چه مستوراتو ته تعلیم ورکول عیب نه دے بلکه سراسر فائده ده۔

(۱) خلاصه دا چه په هر انسان فرض دی چه ځان او پسې ترقي او عاقبت ته نظر اوکړي او داسې عمل کوي چه هغه موجب د نجات شي۔ نه باعث د پسات (فساد)

(۶) **میاں محمد یوسف** د سروډیرو۔ د احمد میاں خورئی وه۔ ډپټي نذیر احمد ناول توبته النصوح یې په کال ۱۸۷۸ کښې ترجمه کړو۔ مولوی عبدالرحیم (مرحوم) ناظم اورنیټل لائبریری اسلامیه کالج چه خپله هم ستر عالم وه د دے ترجمه په حقله لیکي۔ د دے کتاب ژبه پاکه او فصیحه ده۔ او په نثر کښې د پښتنو ادب یوه غوره نمونه ده" "دا رنگ کتاب لیکل د وخت اهم ضرورت وه۔ چه میاں صاحب پوره کړو۔ د یک نمونه یې اوګورئ:-

"ځوئے۔ ما بیشکه ورو کوالی کښې قرآن مجید لوستے وه۔ ولے هغه به میله ژبه دے۔ د طوطي په شان ترے دیو سرنه تریله تیر شوم او مطلق پرے پوئے نشوم۔ چه مضمون پکښې څه وه۔ او مطلب یې څه وه۔

(۷) **میاں عنوان الدین** = کاکاخیل میاں وه۔ په پولیس کښې د ایس پي په عهده ریټائر شو لکه د کاکاخیل میاں ګانو په پښتو زښت مین وه۔ د اخلاق

جلالی ترجمے د عنوان النصائح (چاپ ۱۳۲۲ھ) په نوم د فارسۍ نه پښتو کښے اوکړه ۱۸۸۲ء په یو نظم کښے د سوات د یوسفزو تپه وار ذکر ئې هم کړے دے۔ نثری رواں او خوږ دے۔ جملے ئې وړے وړے او کوټلی دی۔ موقع او محل مطابق محاورے او متلونه هم استعمال وی د میاں نعمان الدین همعصرو ئې هغه ئې په مخرقوم بولی۔

(۸) **عبدالرحمان د تنګی**:۔ د ابازو او سید وخلے وو۔ د یو څوئ نوم ئې مولوی خلیل الرحمان (ساکن تنګی بره زئی) دے چه ما ورسره په مشن هسپتال پیښور کښے چرته چه دے ۱۹۶۱ د سترګو اپریشن له راغلے وو۔ ملاقات کړے وو۔ ورستوے ورسره خط و کتابت هم وو۔ د عبدالرحمان صاحب د قصه چهار درویش د رومی غل قصه پښتو نثر کښے چاپ شوے ده۔ څو نور قلمی آثار هم لری۔ نثر ئې د یخوانی عالمانه عبارت نمونه پیش کوی۔

(۱) کهٔ اګر چه زما فرصت نه وه۔ هم نهٔ قبلول د التماس د دوست راته شه نهٔ ښکارې کیده نو ځکه ما بنده عبدالرحمان چه په کلی د اباز و کښې سکونت لرمه۔ قصه د پښتو کولو د دغې کتاب اوکړو (ص۳) (د اوخت یے د پاره دی شعالیده)

(۱۱) دده په زمانه کښے رعیت آباد۔ خزانه د کهٔ مسافران۔ غریبان په آدام او بے غمه وه۔ په خوشحالئ او معاش سره به ئې ګذران کولو

اوس به موږ دد غه دور د څو فرنګی لیکوالو یا مستشرقین د ادبی خدمت ذکر اختصار سره اوکړو۔

(۱) **میجر راورټی**:۔ د حافظ رحمت خان د غیر مطبوعه پښتو لغت نه ئې یو ډکشنری جوړه کړه۔ ورستوئې یو پښتو ګرامر (۱۸۵۹) هم اولیکلو

گلشن روه دده یو مشهور کتاب دے چه د لوئے سائز ۸۰۰ صفحات لری. دے فاضل مؤلف د پښتو د شپیږ ادباء د کتابونو او لس شاعرانو د کلام ښخه انتخاب پیش کړے دے ... دیک نمونه په ضمیمه کښې

خط نسخ کښې د پښتو چاپه خانے د پاره ټکی هر بارټ فورډ فاؤنډری کښې جوړ کړل دے مولوی احمد همعصر وه هغه سره ئے تله راتلهٔ هم وهٔ.

(۲) پروفیسر ډورن (جرمن) روس کښې د السنهٔ شرقیه پروفیسر پاتے شوے وه. پښتو روسی لغت (۱۸۴۵) پښتو گرامر او د پښتو ادبیاتو انتخاب ئے لیکلی دے. د نعمت الله هروی تاریخ خان جهان لودهی ئے هم په انگریزئی کښې ترجمه او کړه او حاشیه ئے پرے او لیکله. لیننگراډ کښې به اوسیدو.

(۳) والټر بیلیو. پښتو گرامر (۱۸۶۷) پښتو انگریزی ډکشنری (۱۸۶۸) ئے لیکلی دی. د انجیل مقدس ترجمه ئے هم کړے وه.

(۴) ډارمستیټر:- یهودی النسل فرانسیسی وو. په خصوصی ښتن بر صغیر ته ۱۸۸۶ء کښې راليږلے شوے وه. پښتو عوامی سندرے به ئے جمع کولے چه بیا روستو ئے د باغ د بهار په نوم پیرس (۱۸۸۸) نه شائع کړلے. فرانسیسی کښې هم ترجمه شوے ده.

(۵) پادری هیوز:- د پښتو نظم و نثر انتخاب ئے د کلید افغانی (۱۸۷۲) په نوم شائع کړو. د لته د بعض داسے شاعرانو ذکر هم راځی چه بل چرته ئے آثار په لاس نهٔ دی راغلی. داسے د هغوی نومونه باقی پاتے شو.

د ادبی کتابونو جمع کولو شوق ئے لرلو. یا به ئے د هغوی نقلونه حاصل کړل او د ابه ئے بیا تر برټش میوزیم ورا ورسول.

(۶) روس کیپل :- د سر صاحبزاده سره په گډه د اسلامیه کالج پېښور په بانیانو کښې شمېرلے شي. د پښتو یو میتول او گرامر ورسره منسوب دے.

(۷) مورگنستائن :- د اوسلو (ناروے) او سید ونکے وو. د خیرالبیان خوپانړے اول هم دهٔ چرته نه را پیدا کړے وے. د پښتو په اشتقاقات کتاب لیکلے دے.

(۸) بیړ ولف :- په خوشحال خان او د اولسمے صدئی په پښتو شاعرئی یو کتاب لیکلے دے. د شاعرانو د کلام نمونے ئې هم ورکړے دی. دا کتاب ۱۸۹۰ کښې شائع شوے دے.

(۹) گولډن سټیپ :- (جرمن) لغت ئې لیکلے دے ۱۹۱۷ پیټرس برگ (لیننگراډ) کښې په حق او رسید

(۱۰) کیکر المانی :- پښتو فیلا لوجی (لسانیات) باندے ئې ۱۸۹۳ کښې یو رساله لیکلے وه. چه په کښې د پښتو تړکو سنسکرت او وستا سره تعلق خودلے شوے دے.

د مستشرقین دا سلسله د پاکستان جوړیدو نه پس لا نن هم جاری ده. چه تازه مثال ئې د انولسن او اولف کیرو دے. کیرو خپل تحقیقات او شاهدات د پښتو نسلی او لسانی اصلیت په باره کښې په انگریزئی کښې "دی پټهان" په نوم شائع کړل. چه ورستوی بیا پښتو اکیډمی پښتو کښې هم ترجمه اوکړه. قطع نظر ددے نه چه د دے مستشرقین اولین مقصد څهٔ وه. تر دے حده مونږ دوئ منته کوو چه د ناقدرئی او اړی گړی په زمانه کښې بعض قیمتی کتابونه د دوئ په مرسته د ضائع کیدو نه بچ شو. دیورپ د کرجو تړ خانو. عجائب گهرونو او لائبریرو دالماروند دا کتابونه را ویستل او س زمونږ کار

دے۔ دکه چه مولانا عبدالقادر د پیر روښان کتاب خیرالبیان د جرمنی نه
را پیدا کړو۔ چه بیا روستو شائع کړے شو۔ بیشکه دا لټون به د تمام
یو ډیر نوے خدمت وی۔

دا سے د شلمے صدئ په ابتدا کښے په پښتو ادب کښے دهر صنف ابتدا
روشوه مثلاً

(۱) مذهبی کتابونه (۲) د نورو ژبو کتابونو نه ترجمے۔
(۳) د ادبیاتو او نورو تاریخی کتابونه (۴) ګرامر او لغت وغیره
(۵) قصے او ناولونه۔ او دا سے پښتو د سیال د سیالئ تماشه

اوګرزیده او د جدید دور دپاره یو مستحکم بنیاد او اره کیښودے شوه۔
روستو بیا راحت زاخیلی۔ قاضی رحیم الله۔ میاں آزاد ګل۔ خلیق صاحب۔
غنیں هلالی، خادم محمد اکبر۔ عبدالاکبر خان۔ ماسټر عبدالکریم او نورو
کسانو کسانو دا مشال بل او ساته دا سے خبره ترنن ته را اورسی چه خلاص
بحث پرے بیا سهی۔ اوس له پورتنو کسانو نه دیو څو دیک نمونے

راحت زاخیلی ۱۸۸۶-۱۹۶۳ " د راحت افسانے نه صت ۱۲۵) مراوے ګل
اسے مراوی ګله تا خپلے ماشومتیا په زمانه د غوټئ په څهره کښے خاندل۔
هوا په غیږ کښے لوبولے۔ اے په څی ګله چه ته او غوړیدے نو مطلبی پوراګان
درنه چاپیره چورېدل۔ سپوږمئ د محبت په پلوشو ته خندولے۔ شپے
دربانده د ستورو ملغلرے شیندلے.... اوس ۔ ؟ ولے ؟ نه د ر کښے هغه
خوشبوئی شته او نه هغه نرمی ؟ ستاپه مخ نن مړاوے دے....
هغه هوا چه ته ئے په غیږ کښے لوبولے۔ هم هغه هوا به زمکه اوویشتے ؟...
اسے ګله ته خفه کیږه مه د نیا هیڅوک خوشحاله کړے نه دی۔

بله نمونه د افسانو تحفه (ص۲۵) خود پښتو کافر ملک دے۔ چا سره چه مے د پلار نیکهٔ زړکے وے۔ هغوئ ټولو مقدے را او خستے او مقدے
خو روره په پرو جنبو کیږی۔ زما پوره جنبه چرته ده۔
ماخو ټول عمر په بهر او وییستو۔ خو پښتیا داده چه موږ وال نهٔ خپله
پیشه وړاندے کولے شو اونهٔ دبل وړاندے پریږدو۔

(۲) قاضی رحیم الله:- نوے روشنی تحفه مڅ ما په خپله
ځان په اورینټل سکول آف سټډیز لندن کښ کوشش کړے دے چه
هر کله چه د هندی سنسکرت و غیره و غیره ژبو دپاره چه مرے ژبے گنڼلے
شی د هغے دپاره پروفیسران ساتی نو پښتو چه د کرو ړونو بهادرو خلقو ژبه
ده څهٔ گناه کړےده او ورته ولے غافل یئ۔ دا کوشش مے هم کړے دے
چه د ولایت لویو لویو فرمونو ته مے لیکلی دی۔ چه تا سو د دارو و غیره اشیاء
صفت په پښتو کښ هم لیکئ۔ چنانچه په دوارو کاروکښ څهٔ نه څهٔ
کامیابی خو اوشوه۔ مگر یو سرے کافی نهٔ دے۔

(۳) دخلیق صاحب دیک نمونه: (د آزادئ جنگ ص۲۲) د هجرت
تحریک اگرچه په څهٔ عقلمندئ بنا نهٔ وه۔ خو دومره اوشوه چه د پښتنو غیرت
او عملی جوش دنیا ته ښکاره شو او پښتنو دا ثابته کړه چه په کومه خبره
د دوئ یقین راشی نو دوئ دمال او سر د قربانئ نه دریغ نهٔ کوی۔ دا هجرت
د هندوستان دلویو لویو لیډرانو تجویز وه۔ خو عمل پرے صرف پښتنو او کړو
یوه بله نمونه (ص۳۲) نو صاحب زاده صاحب ورته اووے چه دا قاضی صاحب
ماته را او لیږهٔ۔ دا سرے ډیر پوهه معلومیږی قاضی صاحب (عبدالحکیم دځلوزو)
ورغے۔ صاحبزاده صاحب ورته اووے۔ چه په ما خو وخت تیر شو۔ خو

دا نور خلق به فائده ترے واخلی۔ هلکه د مسلم لیگ بنیاد کیده او کار شروع کړه خو یو خبره درته کوم اول اول پکښ دا خانان۔ خان بهادران مه شاملوه۔ ولے چه دوئ په قوم کښ ډیر بد نام دی۔"

(۴) **عبدالاکبرخان** (۱۹۰۰-۱۹۷۹ء) :- (ماخذ مثنوی مولانا روم پښتو ترجمه) بیا د برهان الدین محقق په وینا هغه په علم کښے د امنا ئے کولو په خاطر حلب ته روان شلو۔ په دغه زمانه کښے حلب د علم او تدریس یو لوئے مرکز وه۔ د تاتاریانو د فتنے او فساد په وجه د ایران عالمان فاضلان د ملک نه باهر په راوتو مجبور شوی وو۔ او ډیر دلته په حلب کښے راجمع شوی وو۔ د درس و تدریس په ذریعه ئی گذران کولو۔ (ترجمه مثنوی مولانا روم ص ۹)

د مثنوی د اشعار د ترجمے نمونه :- الله تعالی فرمائی۔ که زه دا اوبه په مزکه کښے پټے کړم او پټے او پټے کړم او خشک یعنی صحرا ترے جوړ کړم څوک دی چه دا اوبه به بیا په چینو کښ راولی سرا زمانه چه بے مثله بزرگ او د مرتبے خاوند یم (ص ۲۱)

(۵) **پروفیسر عبدالمجید افغانی** (۱۸۷۲-۱۹۴۲ء) (شن کالج) د نثر یو نمونه :-

په دے پر آشوب او د تنزل په زمانه کښ هم خدائے یو داسے زبردسته هستی پیدا کړه چه په یو لاس کښ ئے د سیاست توره او په بل کښے قرآن وه۔ او د مغرب نه تر مشرقه پورے ئے تمامه زمکه متحرکه کړه۔ د هغه د دماغی شغلو نه د اسلام مړے شوے سرونه لږ لږ گرم شوے۔ دا غیبی امداد د خدائے مجسم رحمت څوک وو۔ دا سید محمد عبده مصری استاد جمال الدین افغانی وو۔

د مستشرقينو ديک نمونه

# ضميمه مقاله ۳

د راورټي ديک نمونه (گلشن روه ص ۳-۵)

(۱) زاړه کتابونه د پښتو په دي زمانه کښ ډير کم ياب دي بلکه په مينځ کښ د پښتنو هم چه ويونکي د دي ژبي دي سبب ئې دا دي چه له هغه وقت چه زمنو د پاينده خان بارکزي لاس د تسلّط پر بادشاه خيل مونږ لي وه زلزلي د فساد په دغه ملک کښ پله پسي لويدلي دي څکه محاوره او رياضت د ژبي د پښتو په دغه وقت په نسبت د پخوانيو وقتونه کم شوي دي هم له دي سبب که کوم کتاب له اتفاقه په لاس کښيوزي له ډيري غلطيا قابل د لوستو نه وي ولي چه کاتبان تهول مګر څني له دي ژبي بالکل ناواقف دي بدکه پښتانه هم نه دي څکه چه پښتانه اکثر له خوش نويسئ بيګانه دي نور کتاب د پاره د نقل وخوش نويس ته د بل قوم ورکړي نقل کوي۔

پرته د څنو مشهورو کتابو چه په کتاب خانه کښ د سرکار کمپني بهادر په معموره کښ د لندن ښته نور د باندنو افغانستان کتابونه د پښتو په لاس راوړل نادر دي له دے جهته وُپوهيدم چه يو کتاب جمع شوي له متفرقو کتابونه تصنيف شوي د ښو ښو مصنفانو په صحيح عبارت او له

څو نورو نادرو کتابو نُسخه چه په دې زمانه کښ ډېر کم یاب دي چه په ګمان
سره به زیات تر یوه دوي نسخې نه وي مطلوب او مقصود به وُ شمېره شي۔

(۲) مګر لوئ مرادله تصنیف ددې کتاب ۲ آسانول ددې ژبې او یا عثول څوا خواهانو
ځي وه۔ تا چه په هدایت ددې کتاب باعث شوې په څو ورځو کښ ژبه د پښتو
حاصل کړې له څو سببو چه په دیباچه کښ د پښتو لغت می په تفصیل بیان
شوې دی۔ ـ ـ ـ (ص۵)

ترجمه د څو ښو غزلو په انګریزئ چه اکثر په دې کتاب کښ درج دی هم
تیاره کړې می ده او امید لرم چه په دې کال کښ ګهنه د چهاپ وانغوندی۔

## د والټر بیلیو دیک نمونه

(رومن کښ۔ د هغه د ګرامر سخه (ص۱۳۲)

په ښهر کښ چاسره تېکاؤ يې؟ هلته د نرمل خیلو په کندی کښ یو
سړې ځما پېژندګلو اوسی او موږ هغه سخه تېکاؤ یو۔ ته ښخوا چرے
دیخوا ته راغلې يې؟ هو راغلې یم ولے په دا نزد مده د لته کښ نه
یم راغلے او اوس هم نه راتلم مګر یو سخت ضرور راته پېښ شوی
دی او دا ذکه م خپل ځان ستا خدمت لره رسولے دے۔ چه د یدن
درسره وه کوم۔ او خپل حال درته ښکاره کوم۔

## د ښکار په باره خبرے اترے (ص۱۵۰)

صحتحه خبره د وکړله۔ د غسے وکا۔ او صبا غرمه روان شئ۔ او ګوره
هر کله چه کلي ته ورشئ۔ ډېرے چرے په سپین داک باندے وردوئ۔

او پام کوئ - چه تاسو د کلی خلقو سره څۀ زور زیاتے یا څۀ جنګ
جګړه ستیزه و نه کوئ - هر څۀ له دوئ نه غواړئ نکه چرګان -
غوړی - وا ښه یا نور څۀ ګوره چه په روک (نغدو) واخلئ او خبردار
شئ چه په پټو یا باغونو کښ و نه ګرزئ او بل د کلی مشر ملک ته ځما سلام
واچوه - او وایه ورته چه فلانکے راتلونے دے او به ترے سنه
یا شپاړس یا شل کسه ښکاریان غواړی - نور ته یې پوه کړه چه ښه بلد
سړی د پیدا کاندی -

خلاصه مقاله

# جدید دور

د مولوی احمد، میر احمد شاه رضوانی، منشي احمد جان د سرو ډهیرو (مردان) او کاکاخیل میاګانو کاوشونو په برکت د پښتو لیکوالو کښې یو خُل بیا دا یقین پیدا شه چه بې شکه پښتو هم دا توان لري چه لکه د جدیدو ژبو هر قسم ادب ته ځیل ځان کښې ځائے ورکړي. بل انګریزي تعلیم رو رو عام کیدو سره زلمي کول کښې د ذمه وارئ دا احساس هم پیدا شو چه بردئ ژبه کله هم نهٔ خپلیږي خواه کهٔ هغه انګریزي وي کهٔ بله. ځکه د خپلې ژبې آبیارئ پکار ده.

دا سې پښتو د جمود د حالت او د مذهبي منظوم لټریچر او د ترجمو د چار دیوارئ نه بهر قدم واخست. نتیجه ئے دا شوه چه د شاعرئ نه علاوه جدید افسانے، ناول، ډرامے، اخباري او تنقیدي مضامین، ریډیائی تقریرونه او طنز و مزاح وغیره کښې او لیکلے شو. په دے سلسله کښې رومبے نوم د راحت زاخیلي راځي. پیشه ئے کتابت وه. ډیر دور اندیش سړے وه. ځکه د خپل حیثیت او ذمه وارئ نه زیات ادبي خدمت ته ئے ملا وتړله. ۱۹۱۹ء کښې افسانه "کونډه جینئ" او بیا "شلید لے پسنره" او لیکله ۱۹۲۰ء د پښتو ادب تاریخ کښې رومبے ناول نتیجه عشق او لیکلو. راحت صاحب تر څو چه د پښتو خیر میل چالو وهٔ. د دے اخبار کتابت او ترتیب هم د دهٔ په ذمه وهٔ. د دے نه او ل ۱۹۳۰ء د خلافت تحریک خلقو کښې ډیر جوش او خروش

راپیدا کړې وو اپریل ۱۹۲۹ء کښې پښتون رساله جاري کړے شوه - چه مشهور لیکوال ئې ماسټر عبدالکریم - عبدالخالق خلیق (ایډیټر) خادم محمد اکبر عبدالاکبر خان - میرنواز جلیا وغیره وه - دا رساله وخت ناوخت تعطل سره تر ۱۹۴۱ چالو وه - ژبه ئې ساده او عام فهم وه - ځکه په عوام کښې ډیر مقبول وه - او سیاسي بیداري ئې راپیدا کړه - هم د دے زمانے نور لیکوال دادي میاں آزادګل (مدیر رساله افغان مردان) حاجي خان میر هلالي (جمهوریت پیښور) فضل احمد غر، سمندر خان سمندر، امیر حمزه شنواري وغیره - دا وخت لکه د فضل حق شیدا - میاں سید رسول رسا او مولانا عبدالقادر ګنې انګریزي تعلیم یافته کسان هم په دے میدان راګډ شول -

۱۹۴۰ء عالمي جنګ او نخت دا وخت د مرکزي محکمه اطلاعات د طرفه د دهلي نه په پښتو کښې اباسین او بیا "ژوند" دا اووتله - دا وخت په دهلي کښې ډیر قابل کسان راغونډ شوي وو - لکه نصرالله خان نصر انړي بیرسټر - عبدالروف سواتي - مولانا عبدالقادر - اسلم خټک وغیره هم ځکه د دا دور د اباسین ډیر چو معیار ډیر اوچت وو - د پښتون نه پس اباسین د پښتو لیکوالو حوصله افزائي او تربیت اوکړو - د پاکستان جوړیدو نه پس دا رساله بیا کراچۍ - اسلام آباد او آخر کښې پیښور ته دا غله او نن هم دلته ترخپیده وسه او د مالي استطاعت په حد ورکښې دا نفاد میشن سره سره د پښتو ژبے او ادب بیش بها خدمت کوي - غلام قادر او پیر محمد شارق (مرحوم ) تر ډیرے مودے د دے رسالے ادارت کړے وے - په لیکوالو کښې ئې پروفیسر عبدالرحیم نیازي - میاں احمد شاه (چارسده) فضل حق شیدا، عبدالغفور خان - ګل افضل - عرب خان -

قاضی عبد الحلیم اثر۔ میر مهدی شاه، اجمل ختک، میر رحمان۔ محمد ایاز،
شیر محمد مینوش۔ سلطان محمد صابر۔ محمد اسلم خان کمالی، خیال بخاری،
سیده قانته بیګم۔ طلحه جان، ناز جاوید او نور کښې نوموړ راځی۔ چه
په ذکر ئې پښتانهٔ لیکوال نن هم د فخر نه سر او چت اوړے شی۔ د کوټه
په علاقه کښې د اوس رسالے خدمات هم د ډیرو لونو دی۔ د ے سره
سره په پیښور کښې د تیرا یګل انفارمیشن جمهور اسلام هم تر ډیرے
مودے د دے علاقے او د ادب خدمت کړے دے۔ شوکت الله اکبر، عبد الله جان
اسیر۔ قاضی سعید محمد او احسان الله خان د ادش غونډے کسانے
ایدیټران پاتے شوی دی۔ د ے سرکاری رسالو نه علاوه کښې پرائیویټ
رسالے هم جاری شوے۔ لکه قند مردان۔ دوران پښاور، ګلستان کوټه
او کښې نور مقامی اخبارات کښې هم د پښتو یو صفحه راتلل شروع شو۔
بلکه اوس خود پښتو پورا ورځ پاڼړے یا روز نامے هم شائع کیږی۔
د اسے ډیر نو آموز لیکوال په کښے تربیت بیا موتو۔ ودسره ورسره د پښتو ادب
نه هم ښهٔ نثری سرمایه په لاس راغله۔
د پښتو نثر په فروغ کښې د ریډیو اوتی وی کردار هم د هیرو لونه دے۔ د اسے
د حالات حاضره نه واخله تر سائنس۔ زراعت، باغ بارئ۔ او مذهبیات
وغیره په هرڅهٔ د تقاریر سلسلو سره ډیر کار اوکړو مقامی ریډیو یو دپاره
د سمندر خان سمندر او عبد الله جان مغموم تبصرے او نور لیکونه دهیرو لو
ښهٔ دی۔ او په ټیلی ویژن د افضل رضا او محمد اعظم اعظم ډرامے هم۔
اوس په راشوکتابی ادب طرف نه۔ د پاکستان جوړیدو نه لاړ اول د نوے
روښنی او شهیدے سیکښے نه پس په ډرامو کښې د عبد الله جان اسیر درس

عبرت، د اسلم خټک دوینو جام - لیکلے شوے وو- بیا ورپسے د درامونه علاوه د ناولونو او افسانو دور راغے- مګر د کتابونو په اشاعت کښے لوئے خنډ د پښتو خپلے تربے سره یے اتفاقي ده چه کتاب خرڅیږی نه نو چاپ کیږی به څنګه ؟ بیا هم د دیرشو ورستو په سوانح- تاریخ- فقه حدیث وتفسیر او ادب په مختلف صنفونو کښے قابل قدر اضافه اوشوه ترڅو چه اوس پښتو د سائنس او معاشیات غوندے ثقیل مضامین تههم په خپل ملنی کښے ځائے ورکړو- او په دغه مضامین کښے تر FSC/FA یعنی دولسم پورے کتابونه ملاویدے شی-

## (۱) تفسیر وحدیث وسیرت :-

د رستم مولوی حبیب الرحمان تفسیر حبیبی نه علاوه د درمنګو مولوی عبد الرؤف صاحب او د حافظ ادریس صاحب تفسیرونه چاپ شوی دی- دے نه علاوه د مولانا عبد القادر ترجمه هم قسطوار د اکیډمی په رساله کښے راځی- په حدیث کښے صحیح بخاری او د حدیث د بعض نورو کتابونو ترجمے هم بازار کښے لیدے شی- د سیرت په سلسله کښے د شبلی او سید سلیمان ندوی د سیرة النبی د ټولو جلدونو نه علاوه د الفاروق ترجمه هم شوے ده- د پیر بخش وکیل "زمونږ نبی" نه علاوه "ښکلے رسول" "پاک رسول" "نور الهدیٰ" او ورو لویو د پاره په سیرت او حیٰوة طیبه کښے کتابونه پښتو نثر کښے چاپ شوی دی -(د هنګو سید جعفر حسین د قرآن پاک پښتو نظم کښے ترجمه هم چاپ شوے ده)

## (۲) افسانه او ناول :-

د دواړو توکه په پښتو کښے د اردو تحفه راغلی دی- مګر بیا هم ډیر مقبول دی او په شوق سره لوستے شی- د پښتو ګڼړے افسانے په مختلف اخبارونو او رسالو کښے خورے ورے پرتے دی- ضرورت دے چه دا راغونډے کړے شی-

فنی لحاظ سره پرے تنقید اوکړے شی اود هر کال بهترین انتخاب ځان ته جدا چاپ کړے شی - د اسے معیار به بے ځ بهتر شی - د لیکونکو فهرست ځ طویل دے چه دے لنډ شان مضمون کښے پرے بحث نشی کیدے - البته دومره به ضرور اووایو چه بعض پکښے دومره مقبول شوے چه د اردو او انګریزي ژبو ته هم وړ ځولے شوه. په نوے ناولونو کښے د صاحبزاده ادریس پیغله - د حمزه شنواری نوے پیچے - د رشید علی دهقان د سرو تعویذ - د سید رسول رسا ګنړ ناولونه د زیتون بانو او ایس اے رحمان په نومونو به اکتفا اوکړو - همدغه او بعض نورو لیکوالو نومونو سره ګنړے د ډیر یادګے وړ اے هم منسوب دی. د پښتو لیک په سلسله کښے د بلوچستان د سیمے بعض لیکوالو لکه فضل احمد غازی - سیال کاکړ، عبدالقدوس ورانی، بوپالی او صاحبزاده حمید الله وغیره خدمات هم د هیرولو نه دی. چا چه د پښتو د چمن ترخیه وسه پنټه آبیاری کړے ده -

## (۳) تاریخی څیړنه :-

په دے مد کښے د مرحوم نصرالله خان نصر ګنړے کتابچے - د عبدالحلیم اثر روحانی تړون د ذکرور دی - دے نه علاوه د پیر معظم شاه تاریخ رحمت خانی چه څو کاله مخکښے د روښن خان نوانکلی په واسطه چاپ شو - د میاں بهادر شاه "پښتانه د تاریخ په رنړا کښے" د قاضی عطاء الله "تاریخ پښتون" د فضل حق شیدا "جمال الدین افغانی" د ډاکټر لعل بها "تاریخ اسلامیه کالج پشاور" (چه د پښتو اکیډیمي په رساله کښے قسطوار چاپ شوے دے) او د راقم الحروف بجرالانوار څو شالونه دی

(۴) تنقیدی مضامین په موجوده دور کښے د دوست محمد کامل - میر عبدالصمد (ډاکټر لیکل ځ په اردو کښے دی) د میاں سید رسول رسا ذکر مخکښے راغلے دے - دے

نه علاوه د مولوی قاضی عبد السلام ۔ سید انوار الحق، ډاکټر عظیم شاه خیال بخاری ۔ پروفیسر محمد نواز طائرؔ، افضل رضا، محمد اعظم اعظم او قلندر مومند په دے مد کښے ښه لیکل کړی دی ۔

(۵) **طنز و مزاح** او ادب لطیف د ادب یو مشکل صنف دے ۔ ډیر هنر غواړی ۔ په دے سلسله کښے محمد نواز طائرؔ، سلمیٰ شاهین او د ښځو ز مانے عبد الاکبر خان نه واخله تر نن تو عبد الله جان مغموم او مجذوب یو څو ښالونه سرِ دست کافی او ګڼړی

(۶) **خوشحالیات:۔**

دوست محمد کامل پښتو کښے "تاریخ مرصع" او په اردو انګریزئی کښے په خوشحال خان سیر حاصل بحث کړے دے ۔ د میر عبد الصمد ذکر مونږ پورته د تنقید په مد کښے هم کړے وه ۔ سید رسول رسّا د ارمغان خوشحال په ابتدائی اوراق کښے په خوشحال خان یو تفصیلی بیان لیکلے دے ۔ د پښتو اکیډمی خوشحال سیل هم ښه نثری مضامین او تحقیقی مقالے پیش کوی ۔ اباسین آرټس کونسل (خوشحال نامه) او د سید انوار الحق او فارغ بخاری رضا همدانی او خاطر غزنوی اُردو کتابونه هم ښهٔ کوششونه دی ۔

(۷) **فولکلوری نثر:۔**

د پښتو اکثر فولکلور عوامی قصئی په نظم کښے شائع شوی دی ۔ البته د مولوی عبد الرحمان تنګی قصه چهار درویش د رومی درویش قصه په پښتو نثر کښے چاپ شوے ده عبارت ئے روان او ساده دے ۔

۸ **تعلیمی نثر:۔**

پښتو په طور د یو اختیاری مضمون د پرائمرئی نه واخله تر بی اے

پوره منظور شوی دی. ددې نه علاوه وس د ایم اے ایم فل او پي ایچ ډي درجو پورې پکښې درس وتدریس او تحقیقي لټون هم کیږي. بهارستان افغاني تر ډیره زمانه د پنجاب یونیورسټي په زمانه کښې د میټرک کورس کښې شامل وه. بیا روستو د مولوي عبدالسلام " ادبي سوغات " راغے او س د ځه موده راسے میټرک او ایف اے د پاره د پښتو اکیډیمي ایډټ شوی کتابونه منظور شوي دي. په دے سلسله کښې د مولانا عبدالقادر مرحوم نه علاوه ډاکټر انوار الحق (رشید) سید عظیم شاه خیال بخاري. نواز طائر د مولانا عبدالقادر په مشرۍ کښې تیکسټ بک بورډ د پاره کنړ کتابونه لیکلي دي او د بنیادي پښتو کنړے کتابونه هم.

## (۹) کالج میګزین :-

د صوبه سرحد مختلف کالجونه خپله یو رساله کال کښې ضرور او باسي. چه اکثر پکښې د پښتو برخه هم لري. او د اسے طالب علمانو ته د لیکلو یو ښه موقع ورکړي. د دے سره د دیرو قلم روان شي. په دے سلسله کښې د اسلامیه کالج خیبر ډیر زوړ او خلند ه تاریخ لري. جسټس شیر بهادر خان سید رسول رسا، مولانا عبدالحئ شوکت الله اکبر، اشرف مفتون. میا محمد یوسف نصرالله خان نصر. یونس خلیل، جهان زیب نیاز او محمد اعظم اعظم او ر قم الحروف وغیره هم د دے ټکسال تحفه را اوتي دي.

د افغانستان نه راغلي بعض پښتو لیکوال هم پخپل مخصوص رنګ کښې لیکي او په دے سلسله کښې د کړاو او ځه نر ځه تحقیق نه کار اخلي.

پښتو کښې نثر نویسانو شمیر په صوبه سرحد او بلوچستان کښې ډیر زیات دے معاني غواړم ما د لته صرف یو څو نومونه او شمیر لے شو مګکښې

اوس دننثر د ارتقا اندازه لګولو دپاره د ننني دورد څو لیکوالو د عبارت نمونے پیش کوم د مقالے د اوږد والي ترمخه زهٔ به د لته صرف د یو څو لیکوالو د یک نمونے پیش کړے شم او هغه هم د څو هغه کسانو چه نن په دا دنیا نشته - په طور د عقیدت -

(۱۹۱۰ — )

(۱) **فضل حق شیدا** - ادب د هر قوم په ژوند کښے ډیر اهم کردار ادا کړے دے اوکوی - د یو قوم د معاشرت تهذیب او تمدن - احساسات او جذبات - د پستئ او بلندئ بلکه د مرګ او ژوند وف انداز د هغهٔ د ادب نه ښهٔ لګیدے شی - ګویا ادب د معاشرے ترجمان او یو داسے صفا آئینه ده - چه د ژوند د هر اړخ صحیح عکاسی پکښے کیږی - د قومونو ادبی سرمایه د صدو او پیړو د محنت - خوارئ او کړاؤ نتیجه وی - دا سرمایه په یو ورځ کښے نهٔ پیدا کیږی - او نه یو نسل - یوے پیړئ یا یو دورسره تعلق لری - دا د هغوئ په ټول ژوند - ټوله هستئ، ټول تاریخ حاوی وی -"

(شکور ګلونه ص ۱)

سله نمونه = د غه ورځ ما ته پته اولګیده چه میاشت کښے دوه روپو کمے زیاتے د انسان د ژوند نظریه او د اخلاقو معیار څومره بدل کړی - لیکن دا یواځے معقابه نهٔ ده - زمونږ ملک کښے به څومره میندے خویندے او کونډے رنډے داسے ډیرے وی چه اوهٔ روپئ میاشت به هم نهٔ مومی او ځنے خو داسے دی کهٔ ډیرے مجبورے شی هم به چاکره خوارئ مزدورئ ته غاړه نهٔ ږدی - لیکن غریبی بده بلا ده ستړے زمانه درپه در اوګرځوی - (شکور ګلونه ص ۶۳)

(۱۹۰۵-۶-۱۴) (۱)

(۲) **مولانا عبد القادر**: ۷۹-۱۰-۲۲ صاحبزاده خدائے پاک پیدا

کړے دے د پاره وو - چه د خپل ملک او ملت خلق د جهالت نه رڼا ته را اوباسی - یتیم یسیری لوے کړو - هیڅ دنیاوی اسره ئے نه لرله خو الله تعالیٰ ورله هغه مدارج دنیاوی ورکړل چه زیات تر ے نشو کیدے ۔

د صوبے تمام اولس ئے د تعلیم میدان کښے د نورو سره او بره په اوبره اودروه او د صوبے د سیاسی روښان بنیاد ئے کیښوده (شکور ګلونه ص۲۱)

(۲) القراف ۔" او که تاسو څه په دے شک کښے یئ ۔ چه مونږ خپل بنده (رسول پاک صلی الله علیه وسلم) له څه را لیږلی دی (هغه درست نه دی) نو تاسے دے په شان یو سورت (خو چرته نه) را وړئ او بے د الله خپل ټول ګواهان شاهدان را ولئ که چرے تاسو ځان رښتونے ګڼړئ ۔

(پښتو ۱۹۷۸ ص۱۵ اعتراف نمبر)

(۳) کله چه زه طالب علم وم ۲۲ اپریل ۱۹۶۲ء دیله یاتی تقریر څخه) هغه لا رچه زه به د خپل عمر ترلسو کالو پورے تلم ۔ هغه د زغنو بوټو نه د که پکه وه ۔ دا زما نصیبه وه ځکه چه په کلی کښے پرائمری مدرسه نه وه ۔ مونږ به د خپل کلی نه دوه نیم میله لرے مدرسے ته هره ورځ روان وه ۔ او ځاے به ے د ازغو د لاسه اکثر خیرے و یرے شوے په لاره به مونږ په درے ورکوټو او بو لوئے خوړ هره ورځ پورے وتو ۔ بنه ئم یاد دی چه پوره څلور کاله دے ورکوټی سکول ته خپل د نختو لوټو د کور نه تلم راتلم (۱۹۱۶ بیا کالجیټ ته لاړ مؤلف

(د مولانا عبد القادر خطونه ص۲۹)

(۳) دوست محمد کامل ۔ (۱۹۱۵-۱۹۸۱) (۱) لنګر کوټ چه په تیرو پانړو کښے پرے هم خبرے شوی دی ګړهی کپوره دے ۔ چه له هوتی مردان ته شپږ میله خاتین ته د مردان ضلعے ۔ مردان تحصیل کښے د اما زو مند نړو په تپه کښے دے ۔

په څلور کلو مشتمل دے۔ کوټ دولت زئی۔ کوټ اسمٰعیل زئی۔ کوړهی دولت زئی
کوړهی اسمٰعیل زئی۔ دغه قلا په کوټ اسمٰعیل زئی کښے جوړه کړے شوے وه او
هم دد غه قلا د جوړېدو په وجه د مغلو او د خوشحال بابا ترمینځه نښکاره
مخالفت آغاز اوشو (تاریخ مرصع ص۱۱۹۸)

(۱۱) شیر شاه لکه چه وړومبے تاسو اولوستل۔ د مشرقی پنجاب په حصار
فیروزه کښے زیږېدلے وو۔ ۱۵۰۰ یعنی ۹۰۶ھ کښے چه باچهی آغاز کالے دے
د قمری کنړے له رویه د اویا کالو وه۔ او د وفات ۹۵۲ھ مطابق ۱۵۴۵ عمر
ئے تقریباً پینځه اویا کاله وه۔ لکه چه مؤرخان وائی۔ شیر شاه به ارمان
کولو چه هغه له باچهی د شپیته پلاس ورغلے و۔ خوننړ پوهیږ و چه یو دومره
لوئے نابغه او فطین انسان په دغه حقیقت وئے نۀ وو خبر شوے۔ چه
د هغهٔ د حکومت دا مختصره شپه د فرمانروائی د کنړو وید دو ورځونه
ډیره زیاته رونسانه وه۔ څنګه به پرے نۀ وو پوهه۔ ضرور به پرے پوهه
وو۔ خو د هغهٔ د معیار له رویه په حکومت کښے دخدمت
هر وخت ډیر لږ او هر موقع ډیره وړه وه د هغه لوړ معیار ته د رسید وملو سے
هغه پخپل عظیم کارمطمئن کید و ته نۀ پرېښوده۔ (تاریخ مرصع ص۱۰۷۵)

(۱۲) نصر الله خان نصر۔ (۱۹۱۹۔ ۱۹۶۵) ۱۸۲۹ چه فیرنګیان په ملک قابض
شو او د پېښور اوسید و نکوته ئے تیمه کړے مذهبی آزادی ورکړه نو
د پېښور ضلع پښتنو د مهابت خان جماعت له په خلاص متپ چنده ورکړه۔
او په د غه چنده ئے د جماعت جمبر دروازے۔ مات برجونه۔ د غولی فرش
او دا سے نور وران شوی ځایونه جوړ کړل۔ لیکن هغه شانی جوړ نکړے
شو څنګه چه پخوا وو۔ قطب طرف ته دروازه یی قطعاً بند کړه۔ ځکه

چه سکهانو په آسونه بالاحصار قلعے نه د مهابت خان جماعت ته په دے لاره راوستل ـ د سکهانو نه پس ځلوېښت پخوس کاله دے جمات متولیان پښتانهٔ وو ـ د دے نه پس د پېښور بنه مشهور او مالدار سوداګر سیټهه کریم بخش متولی وو (د اسلامیه کالج پېښور جمات هم سیټهه کریم بخش جوړ کړے وو)

(پمفلټ مهابت خان جمات ص۱۱)

مله نمونه :- شیخ ملی چه د مرګ خونے ته نژدے شهٔ ـ عقیدتمندان چه ورله آخری دیدن له راغله ـ دهٔ ورته او وے ما د اولس خدمت دپاره د خدائے کړے دے ـ د طمع او لالچ په خاطر نهٔ دے کړے ـ په ټوله عمر کښے یو درهم یاد دے چه لاس لمے راغلے وو ـ لیکن هغه مے په څهٔ طمع نهٔ وو آخستے ـ کهٔ چرے زهٔ رښتونے یم ـ نو زهٔ دا امید لرم چه خداوند پاک به زما وضع شوے رسم دستور او ویش باندے زما اولس تر اوهٔ پښته پورے عمل کوی او که م دروغ ویلی وی زر تر زره به ورک شی ـ معلومه دا شوه چه شیخ ملی رښتونے وو ـ (شکور ګلونه ص۵۰)

## (۶) سید نصر اللہ جان ـ

قوم څهٔ ته وائی؟ په سیاسی علم کښے قوم د بندیانو هغه ټولی ته وائی چه قانونے په خپله رضا رغبت په مخصوصه خطه کښے په یو تنظیم کښے داسے راغونډ کړے وی چه د خپل تنظیم د چلن د پاره آئین او په خپلو کښے یو تربله او بهرنی قومونو سره د تعلقات او د خپلے بښیګړے او بنیرازئی په حقله مسودے ـ قوانین او قاعدے (قاعدے) په خپلے شورے سره پخپله جوړ وی ـ دا منظم ټولے په هر لحاظ په اندرونی او بیرونی معاملو کښے اختیارمند وی ـ ـ ـ دلے د قومیت په حقله څهٔ ویل ضروری دی ـ څنګ خلق وائی دا نسل

(۲) رنګ (۳) ژبه (۴) مذهب ګڼے د قومیت جوړولو مختلف بنیادونه دی۔ خو د تاریخ نه دا خبره درسته نهٔ معلومیږی چه یو قوم هم ځرے یا چرته په دے شیو نو بنا شوے نهٔ دے ثابت۔ دے خو خپل خالق خپل شان کښے راپیدا کړے دے او بیا ئے په دغه الٰهی شان کښے د خپله طرفه په دنیا کښے د خپل الٰهی نظام د برقرار ساتلو د پاره نائب (خلیفه) مقرر کړے دے۔ ګویا الله د نظام مالک دے او انسان ئے د هغه نظام برقرار ساتلو نائب په دغه مدعا کښ مالک او نائب (الله او انسان) هم غرضه شول (شکور ګلونه ط۳۱-۳۰)

(۶) **عبدالله جان اسیر**۔ (۱۹۱۰ - ) شیر عالم ته چه دا حالات معلوم شول نو هغه په سیکښے پسے تلاش شروع کړو۔ خو کامیاب نهٔ شو۔ عمر وته تیر شول۔ شیر عالم بوډا شو۔ په پنشن باندے د نوکرئ نه او وتو۔ هغه ایکی یو زوئ ګل عالم د ډاکټرئ امتحان پاس کړو ... یو ورځ ئے مریضان کتل چه خوا کښے ورسره یو پیغله جینئ اوودریده۔ د دے جینئ مخ سوزیدلے وو .... بے اندازے بد شکله شوے وه۔ او چه بنده به ورته کتل نو د ویرے نه به ئے غوټی زیګ کیدل ... د ګل عالم خیال وو چه ګنی دا هم څوک مریضه ده۔ خو چه هغه ورته اوویل وا یه نهٔ څه وائے نو جینئ ورته اوویل دا ډاکټر صاحب یو آنه خیراتی راکړه۔ ګل عالم په دے خبره آوریدو حیران شان شو او څهٔ قدرے غصه هم شو نو .... جینئ ته ئې څه او نهٔ وے۔ او نیغ نیغ ئے د دے مخ ته کتل ... ګورهٔ دا یه ښهٔ نهٔ وی چه ستا د دے مخ علاج اوشی۔ جینئ به حیرانتیٔ سره ورته اوویل د جی" ... ګل عالم د جینئ علاج شروع کړو ...... او چه ورستی ځل ئے پیټئ پورا لیستے۔ نو څهٔ وخته پورے خو خپله هم د دهٔ دا یقین نهٔ وو

نوټ = د څه مضمون حذف کولو په وخت ..... کوښے ییکلے شوی دی

چه دا کنی هغه بد شکله جنئ ده ـ ( انتخاب جمهور اسلام ص۳۰۸ )

(۷) **مولانا حافظ ادریس** = (۱۹۱۵-۱۹۶۵) لیونی په دنیا ډیر دی ـ ځو ځنے لیونی داسے وی چه د خپل زور او لیونتوب په وجه ډیر مخلوق ځان سره په لړزان کړی ـ کلی وران کړی ـ ښهریے ویجاړے کړی او ملکونه برباد کړی ـ په دغه غټو لیونو کښے یو غټ لیونے ابو طاهر قرمطی وو چه خانه کعبے لوټلے وه ـ حجر اسودے ئے تښتولے وو ـ او په زرګونو حاجیانے بے خطا او بے قصوره شهیدان کړی وو ... سوال دا پیدا کیږی چه په دغه زمانه کښے د بغداد خلیفه څه کول چه غلے ناست وو ـ نو خبره داده چه په دغه وخت کښے خلیفه ګان د خپلو مریانو په لاس کښے لوبیدلی او د خپل ژوند د پارهٔ د هغوی نه پناه غوښته ـ نو هغوی هیڅ نهٔ شو کولے په وطن کښے پادشاه ګردی شروع شوے وه او د ظالمانو واکے سستے شوے وے ـ ( انتخاب جمهور اسلام ص۵۶-۱۵۱ )

(ii) زما دا عقیده ده ـ چه هر قوم یوائے د ځپلے ژبے په ذریعه د علم ژوروتیا ته ور غورزید لے شی او هیڅوک په بله ژبه کښے د علم باریکئ ته ځان رسولے نشی ـ نو دا خبره د پښتنو د پاره یو نیک فال دے چه نن پښتو ته ژنګ ژنګ کتابونه را نقل کیږی او زمونږ جولئ د علم د ګلونو او هنرونو د میوو نه ډکیږی ( د علم لارے ص۱۲ )

(۸) **صاحبزاده ادریس** (۲-۳-۱۹۰۳ ء / ۲۵-۹-۸۴) د دنیا واقعات او په تیره تیره زمونږ د وطن واقعات او د ملت حالات داسے څیزونه دی چه څوک آرام ته نهٔ پریږدی ـ دے کښے کونډکیان کو یا شو ـ خطیب او استاد خو په ځائے پریږده نو مطلب دا دے چه د دنیا موجوده حالات او په دنیا کښے د

پاکستان حالت ته زړه اوګورم نو که څوک راته د یرے د عقل رسئ واچوی -
خود وینا نه نۀ پلټے کیږم - او ربنتیا خبره خو دا ده چه کوم انسان ځان ته
انسان وائی - او ځان د آدم اولاد ګنړی - د ے حالاتو کښے کله چپ پاتے کیدشی
یا ورله چپ پاتے کیدل پکاردی -

(۱۱) ربنتیا خبره دا ده چه که چرے موبږ کښے د جمهوریت چلولو احساس
او اهلیت پیدا شی نو نا اهل لیډران به له ویرے په خپله د اختیار
واګے د لاسه او غورځوی - او کوټ کښے به پټ شی - د پاکستان د کامیابئ
او نا کامیابئ دارومدار په یوڅو کسانو نۀ د ے - په درست قوم د ے - که
قوم خپل ځان او خپل مقام او پیژنی - نو وړانے سمید ے شی او تقدیرونه
بد لید ے شی ... د کونتر ے ژوند پریږدئ او ځان نه بازونه جوړ
کړئ ... د پاکستان لوئ دولت د پاکستان خلق د ے ... سرۀ او سپین نۀ دی -
زما دا یقین د ے چه پاکستان نه یو ښکلے او آباد ملک جوړید ے شی - خو
شرط دا د ے چه خلقو کښ د زیات کار جذبه را پیدا شی او د بے کارئ - خود
غرضئ - رشوت - آرام طلبئ او تن آسانئ جرړے غوځې شی -

(د سهیل شور ے - بحواله پښتو ۱۹۷۸ء اعتراف نمبر ص ۱۱۹-۱۱۴)

**لالا عبد الرحیم نیازی** ۹-۱۲-۹۱ / ۲۷-۱-۹۸ (۱) پښتون همیشه مجاهد پاتے شوے د ے او د اسلام خدمت ئے په
توره کړے د ے - په علم الکلام باند ے ئے کتابونه نۀ دی لیکلی - نۀ ئے په فلسفه
باند ے ئے خپل وخت ضائع کړے د ے - نثر هم په پښتو کښے کم لیکلے شوے
د ے ... د پښتو ادب ډیره حصه شعر کښے ده - بلکه زما خیال دا د ے چه د
پښتو ادب امتیازی نښان شاعری ده - پښتون ادیب شاعروی ... د د ے
بهترین مثال رسا د ے - شید ا د ے - د رسا نظر همه ګیر نظر د ے - د مهمند و

سنځا هم دده د نظره نه خطا شوے نۀ دے۔ دا تحریک د امید فتح الباب دے۔

(۱۱) د خوکالو را سے نثر ته هم توجه شوے ده۔ او دا مسلمه خبره ده چه علمی مضامین د پاره نثر او د جذباتو تحریک۔ تربیت او تفریح د ذوق او شوق غذا او لذت اندوزی په شعر کښے وی۔۔۔ ادبی تهولی خپل ژوند کښے ډیر مفید کار کړے دے۔ ژمکه ئے تیاره کړے ده۔ تخم ئے کرلے دے۔ خو تر اوسه پورے تحریک کښے اجتماعی ژوند نۀ دے پیدا شوے او دا نخښه د جمود ده۔ (شکوړ ګلونه صلے)

**پیر محمد شارق** (۱۹۲۰-    ) دا خط د میرو ناڅی په لاس در لیږم۔ د زیارت ښیے له چه ځان را اورسے د کل شیر مور ډیر پریوم۔ خو د مدعا په خپلہ ځان وژنی۔ وائی زۀ خپل زوے دا سے بے مالکے او کے نشم کښینولے کۀ توان لری ډیره ښه۔ کنے د هغسے دے ګرزی۔۔۔ د کلی دود ئی ده۔۔۔۔ سنت څه مصیبت دے۔ دا دود د ستور۔ د ښځو خوشے سیالی ژمونږ د عزیزو لئے په ځې پولیکن دا غ دے۔

(۲) د مورے ځایه پښے هلک د کاره او ویست۔ د استاد شکایت ئے چه راشی۔ نو مور ئے په ملا تړ کښے ولاړه وی۔ بند را نه خطا دے۔ چه آخر دے به څه کوی؟

(۳) میاشت ته خلق د ورمبئ ورځے ګوری۔ کوم غم چه را سره لکه د سوری مل وه۔ آخر ښتیا شو د اختر د غرمے نه کل شیر چرته ورک دے۔ کۀ ژمانه په زړۀ وے خو چه پل ے وریلسے نۀ وے اخستے۔ و۔لے د کوے ورځے نه چه هغه تښتید لے دے۔ مورے کټ نیولے دے۔ د هغې پو کالے نیمے هم د ځان سره اوړے دے۔۔۔ ته او وایه چه زۀ دا سے ژوی سره څه

اوکرم! وے دے ھر څه مجرم زهٔ یم (شکوے گلونه ص ۱۰۸-۱۰۶)

**محمد نواز خټک** (۱۹۱۱ -) " زهٔ څوک یم؟ - ملګر و زهٔ هغه بد بخته یم - زهٔ هغه بد نصیبه یم چه د مورنئ ژبے پښتو په حقله ے پوار مان هم اونهٔ ژړید و - هر چا به چغے وهلے چه علاقائی ژبو ته ترقی ورکول د ملک و ملت خدمت دے بچو ته په مورنئ ژبه کښے زده کړه ورکول فطری خبره ده - خو هیڅوک هم زمونږ دے حق منلو ته لا تیار نهٔ دی - او نهٔ مونږ د دے حق د ارکنړی "

مخکښے لیکی " دا سے وائی چه ګوتم بده چه د نړئ په قول او فعل کښے بے لتون اولید او د نړئ په ناروا کارونو ئے وس اونهٔ رسید و نو د لته پیښنور کښے ئے خپلے سترګے او چولے ... زهٔ شکر دے مسلمان یم - پښتون یم - د امید ملنګله هم له لاسونه نهٔ پریږدم - توکل مے تل د لار ے مل وی د خدا ئے د فضل نه نا اُمیده نهٔ یم - سترګے به غړومه - ژغ به کومه او د و یښ ضمیر خاوندان به پرے خبر ومه (پښتو اعتراف ص ۵۳-۱۵۲)

او په آخر کښے د بلوچستان د سیمے د یک یو څو نمونے -

## د بلوچستان د سیمے د نثر یو څلور نمونے -

(۱) د ا سیمه (بلوچستان) د پښتنو د یو لوئ او تاریخی مبارزو له ډکره یوے خواته وه او بل له ابتدا څخه ډیر امن پسند راغلی دی - د اسے مهمے اوسترے تاریخی مبارزے په تیر و څو شپږ و پیریو کښے نهٔ دی په کښے پیښے شوے - د لته باید د ا او وایو چه غوړ او فلسفیانه ادب همیشه تاریخی مبارزو په نتیجه کښے څرګنده د ا اوزی - ادیب همیشه د جهان له حادثاتو او واقعاتو اثر اخلی کهٔ څهٔ هم هغه نثر لیکی - کهٔ شعر وائی -

دجهان واقعات دوه ډوله دي. ولې هر ډول ځانله ډول لري. مونږ ئې په لنډه توګه توضیح داسې کوو. چه انسان ته له ډیرې خوشحالئ هم ژړا ورځي او له ډیره غمه هم د عام سړي ژړا ضائع شي او د ادیب او ښکلي د کاغذ په مخ دانه دانه شي. د ابدي ملغرو شکل اختیار کړي.

(سلطان محمد صابر د کسي د ملنګ پښتانه لیکوال ص۱۵)

(۲) دشاعرئ په مختلف اصنافو کښې د سهیلي پښتونخوا شاعران ښه شعرونه وائي که د چاربیتو غاړه و ټپو او سندرو وار راسي نو د اولس د احساساتو د سازونو په آهنګ کښې داسې لامبو وهي. لکه چه بس خدائے پاک د هم دغه کار دپاره پیدا کړي وي. ځکه خو وایم چه پیر محمد کاکړ. بیټ نیکه او ملک یار غرشین لاژوندي دي. ځکه چه د لته د دوئ د فکر مکتبونه موجود دي (ایضاً ص۲۰ فضل احمد غازي)

(۳) زمانه تل په یو قرار نه وي. ډیر نیته می پیاد دي چه زمونږ په سیمه کښې به چا د پښتو نوم واخستئ نو هر سړي ته به د ے نا شوده ښکاره شو چه ته بیا د غه وګوره چه د چیچې خوا ورته ناست دي. پښتو هم اوس یوه ژبه ده. او چه کله به دیو خوا خوږي لیکوال د خپلې تحفه یو چا د پښتو په باره کښې واوریدل. چه "پښتو خو یو ډیره پخوانئ او اصیله ژبه ده او په دې کښې داز راز کتابونه لیکلے سوي دي. او پر مخ به لا نور هم پکښې لیکل کیږي. اوس دا زمونږ او ستاسي وظیفه ده. چه د خپلې مورنئ ژبې ادبي چوپړ ووهو او هیڅکله ئې دیاده اونه باسو" نو د حساسه لیکوالو خبرو سړلا به د ګران اوریدونکي د سر ویښتان دے جګ سره وودریدل." (ایضاً ص۳۰ سیال کاکړ)

(۴) د پښتنو او د مغولو د غه اختلاف یا رقابت به کله شعوري او

کله به غیر شعوري وو - کله به شک وا ختلاف د پښتانهٔ له خوا وو - او کله به د مغل د دورې - د بابر څخه تر اورنګ زیب پورې دا سې وو چه عمل به مغولو د خوا څخه وه او رد عمل به ئے د پښتانهٔ له خوا وُو - مګر تر اورنګ زیبٔ وروستو چه د مغولو باچهي په شورلۍ سوه نو پښتانهٔ د کومکي په حیثیت دا پرمخ سو. او خپل او چت کردار ئے ادا کړ - خو هغه د بیړیو پیړیو د سیالۍ رقابت او اختلاف خبره تر د مغولو د زړو نو نه اووته - او ددغه شک په فضا کښې موږ د تاریخ په پا ڼو د جنرل بخت خان روهیله پښتانهٔ نوم لولو . . . خود وروستي او بیخي کمزورۍ مغول باچا بهادرشاه ظفر د شک له کبله هغه خپل تاریخي کردار نه کړ ترسره کښې د هند د مسلمانانو تاریخ شاید چه هغه دول نه وائي غوڅ کړي. لکه څرنګه چه یي وروسته غوره کړ - (صاحبزاده حمید الله پښتانهٔ شخصیات ص ۱۳۴)

---